# شریعت
ورځپانه
د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦٧٦ ګڼه / پنجشنبه ۰۷ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د سلواغې ۱۸ مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۰٦ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


## له امریکا پاتې شوي پوځي تجهیزات د افغانستان شتمني ده

د بهرنیو چارو وزارت ویاند مولوي عبدالقهار بلخي وایي، له امریکا څخه را پاتې شوي پوځي تجهیزات د افغانستان شتمني ده.
ښاغلی بلخي زیاته کړې، چې اسلامي امارت د اړیکو نوی پړاو پیل کړی او په افغانستان کې یې جګړې ته د پای ټکی ایښی دی.
د بهرنیو چارو وزارت ویاند دغه



څرګندونې له «سي‌بي‌اېس» نړیوال تلویزیون سره په مرکه کې کړې دي. د مولوي عبدالقهار بلخي دغه څرګندونې په داسې مهال کېږي، چې ډونالډ ټرمپ په بیا واک ته رسېدو سره له اسلامي امارت غوښتي، چې د ۷ میلیاردو ډالرو په ارزښت نظامي تجهیزات بېرته امریکا ته وسپاري.



اسلامي امارت:
# غزه د فلسطیني وګړو خاوره ده او د برخلیک پرېکړه یې څوک نه شي کولی



د افغانستان اسلامي امارت د امریکا د ولسمشر هغه څرګندونې غندلې، چې د فلسطینیانو د بې‌ځایه کولو او په نورو هېوادونو کې د هغوی د مېشتولو په اړه شوې.
بهرنیو چارو وزارت یاده کړنه د ټولو نړیوالو قانونو ښکاره ماتول ګڼلې او غزه یې د فلسطینیانو خاوره بللې ده.
یاده اعلامیه کې وراندې راغلي: ((اسلامي امارت باور لري چې دا ډول پلانونه نه یوازې د صهیونیستي رژیم د شومو اهدافو استازیتوب کوي، ... ۷مخ

## حمایت از بخش‌های ورزشی مکاتب، پوهنتون‌ها و مدارس



ریاست عمومی المپیک، تربیت بدنی و ورزش کشور می‌گوید، بخش‌های ورزشی در مراکز آموزشی از جمله مکاتب، پوهنتون‌ها و مدارس در کشور رُشد داده می‌شود.
این ریاست با نشر خبرنامه‌ای این مطلب را به نقل از مولوی احمدالله وثیق، رئیس عمومی کمیته المپیک، تربیت بدنی و ورزش کشور بیان کرده است.
بربنیاد خبرنامه، آقای وثیق در دیدار با، مسئولین اتحادیه مکاتب دشت برچی شهر کابل از این تصمیم سخن گفته است.
در این دیدار که داد محمد ناوک، رئیس انکشاف ورزش در مکاتب، مدارس و پوهنتون‌های... ص۷

## ۹۷ قلم آثار تاریخی به موزیم ملی انتقال گردید

مسئولان ریاست باستان‌شناسی وزارت اطلاعات و فرهنگ می‌گویند که این ریاست به تعداد ۹۷ قلم اثر باستانی که از ساحات باستانی مس‌عینک ولایت لوگر و ساحه باستانی ستوپه شیوکی ولسوالی بگرامی ولایت کابل کشف گردیده‌بود، بعد از پروسه ... ص۷



د اسلامي امارت بیاځلي واکمنۍ؛
## کابل پوهنتون کې د ماسترۍ او دوکتورا برنامې رامنځته شوې

د لوړو زده‌کړو وزارت ویاند حافظ ضیاءالله هاشمي وایي، چې د افغانستان اسلامي امارت تر بیاځلي واکمنۍ وروسته یوازې په کابل پوهنتون کې د دوکتورا اووه او د ماسترۍ ۱۱ نوي پروګرامونه رامنځته شوي. ۷مخ




## فراه کې د اسان خدمت ځانګې ته ودانۍ جوړېږي

د فراه د احصایې او معلومات ریاست مسئولین وایي، چې په یاد ریاست کې د ۵.۶ میلیونه افغانیو په لګښت د اسان خدمت ځانګې د ودانۍ د رغولو چارې پیل شوې دي.
د یادې ځانګې د پرانیستې پرمهال د یاد ریاست رییس ویلي، چې په یاد ولایت کې د لومړي ځل لپاره د اسان خدمت ځانګې ته د ۵.۶ میلیونه افغانیو په لګښت ودانۍ جوړېږي. ۷مخ

د کار او ټولنیزو چارو وزارت:
## په ملي او نړیواله کچه د حرفوي زده کړو اسناد د اعتبار وړ دي

شـریعت: د کار او ټولنیزو چارو وزارت د چارو اداري مرستیال محمد زاهد احمدزي کابل کې حرفوي فارغینو ته په خبرو کې ویلي، چې دغه اسناد چې د کار او ټولنیزو چارو وزارت له لوري درکول کېږي، دا په داخل او بهر کې د استفادې وړ دي.
له حرفو فارغ اشخاص بیا له حکومته دغه برخه کې... ۷مخ





## سرمقاله

## د کوچنیو بندونو سترې ګټې!

تېره ورځ د نیمروز ولایت د کمال خان بند پرانیسته وشوه. د یاد بند پر ارزښت او ګټو زښته ډېرې لیکنې شوې، ځکه له کلونو راهیسې کار پرې روان او وخت ناوخته یې ګټو چارواکو یادونه کړې ده- چې دادی بالآخره د اسلامي امارت د مشرانو د جدي هڅو په برکت سره یې کارونه ترسره او د استفادې جوګه شو- دا چې موږ اوس یوازې پر کوچنیو بندونو بحث کوو، وجه داده چې د لویو بندونو لګښت خورا ډېر لوړدی، حال دا چې دمګړۍ د افغانانو په ملي خزانه کې دومره څه نشته چې مشرانو د هېواد په ودانولو کې د ډېرې تلوسې له امله زښته ډېرو مهمو پروژو ته لاس اچولی چې هره یوه یې په میلیاردونو مصارف غواړي- په داسې حال کې چې واړه بندونه زیات نه زیات په یوه کال وخت او کم لګښت سره تکمیل کیدی شي- البته ګټه یې ځکه زیاته ده چې لومړی خو دغه خدمت د هېواد نږدې هر لیرې اطرافي کلي ته رسېږي او هغه محروم ولسونه هم ترې مستفید کېدلی شي څوک چې د سترو بندونو زیاترو ګټونه ډېر لیرې او کوم لاس رسی ورته نه لري. دویم دا چې تر ډېره حده د سیلابونو د زیان مخه نیسي. دریم په دغسې کوچنیو بندو سره د هېواد زیاترو ساحو کې د ځمکې نس کې اوبه زېرمه کیږي، کوهیان ډکیږي او هر کور ترې ګټه اخیستلی شي. څلورم هر هغه سپېره کلی سمسور او ښېرازه کولی شي کوم چې پرته له بارانه د اوبه خور کوم بل درک نه لري، ځکه په همدې بند کې د هغوی لپاره د ټول کال د بارانو او سیلابونو اوبه زېرمه کیږې چې بیا د وړو لښتیو پرمټ ګټه ترې اخیستل کېدی شي- پنځم د همدغو کوچنیو بندونو په واسطه موږ کولی شو د خپلو لویو سیندونو اوبه هم د خپل هېواد پر ګڼو سیمو تقسیم او همدلته یې مصرف کړو، بې له دې چې د ګاونډیو هېوادو پام را واړوي او شکایتونه پیل کړي- دا ځکه چې ټول ستر سیندونه هیڅکله یوازې یوه نقطه کې له ځمکې نه راخوټېږي، بلکې د سل ګونو چینو اوبه لسګونو درو او ناوونو کې له راتېرېدو وروسته یوې مجرا ته راغونډیږي او د لوی سیند په بڼه تر اوږده واټن... ۷مخ

## بهره‌برداری از یک مرکز صحی جامع در لغمان



وزارت صحت می‌گوید، کار ساخت یک مرکز صحی جامع به ارزش هفده میلیون افغانی در مربوطات ولایت لغمان تکمیل و به بهره‌برداری سپرده شده است.
به گفته وزارت صحت عامه، مرکز صحی جامع یادشده در ولسوالی «بادپخ» ولایت لغمان ساخته شده و پس از افتتاح به فعالیت آغاز کرده است. ص۷

## پنجشېر کې څه باندې ۲۰۰ متریک ټنه چهارمغز راټول شوي

د پنجشېر د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مسئولینو سږکال په دغه ولایت کې د ۲۰۰.۷ متریک ټنه چهارمغزو د راټولولو خبرورکړی دی.
د یاد ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رییس ویلي، چې د ورکړل شویو شمېرو له مخې سږکال د یاد ولایت له بېلا بېلو سیمو څخه ټولټال ۲۰۰.۷ متریک ټنه چهارمغز راټول شوي دي.
نوموړي زیاته کړې، چې په دې ولایت کې پر ۲۱۵ هکتاره ځمکه د چهارمغزو بڼونه شتون لري.
هغه د چهارمغزو د حاصلاتو د ډېروالي لاملونه مناسبه هوا، پر وخت اورښتونه او د بڼوالوملاتړ ښودلی دی.

## فاریاب کې څه باندې ۸۰۰۰ اړمنو وګړو ته روغتیایي خدمتونه وړاندې شوي

افغاني سره میاشت ټولنه وایي، په تېره یو میاشت کې یې روغتیاپالانو د فاریاب په بېلابېلو سیمو کې څه باندې ۸ زره اړمنو وګړو ته روغتیایي خدمتونه وړاندې شوې دي.
یادې ټولنې په خبرپاڼه کې ویلي،




په دې ترځ کې ۴ زره ۱۲۲ تنو ته د کتنې ترځنګ د اړتیا وړ درمل ورکړي، ۲۴۱ ټپیانو ته پانسمان، ۱ زر ۱۸۳ مېرمنو او ماشومانو ته د بېلابېلو ناروغیو د مخنیوي په برخه کې واکسینونه طبیق شوي دي. ۷مخ

# د ټیکنالوژۍ لوری

خالد افغان

یو ځای مې لوستي وو، «هغه وخت چې ټیلیفون تړلی و، انسان ازاد و؛ خو هغه مهال چې ټیلیفون ازاد شو، انسان وتړل شو.» ددې خبرې مانا دا چې تاري(سیمي) ټیلیفونونو په پېر کې انسانان په خپلو چارو کې خپلواک وو؛ خو کله چې ټیلیفون ازاد شو، د خلکو لاسونو او جیبونو ته ورسېد؛ نو انسان یې وتاړه.

مانا دا چې بشر اوس ټیکنالوژۍ او مډرنېزم داسې پسې اخیستی، لکه لوی خو ارام سمندر چې خلي په خپل سر وړي او بېباکه یې یو خوا بل خوا لوبوي. اوسني پرمختګونه یو بل خصلت هم لري چې د چا انتظار نه کوي. ټکنالوژیک او ساینسي پرمختګونه انسان اړ کوي چې ځان ورسره عیار کړي. ددې خبرې د لا روښتیا په موخه به یوه بېلګه تمثیل کړو. اوسنی بېخرته پرمختګ لکه د ژمي بیخي سړه هوا چې انسان مجبوروي، یو څه واغوندي او که شله‌توب کوم چې نه وي دې او دا سړه هوا ګړۍ په ګړۍ رابانديې لا سړېږي او آن تر منفي ۵۰ درجو رسېږي؛ نو زه بیا اړ کېږم چې ګرم پوښاک پسې وګرځم. زه به داسې مهال ځان په ګرمو کالیو کې نغاړم او یا به د ځان د ګرمونې چل زده کوم چې د سړې هوا درجه رابانديې هماغسې ټیټېږي.



په دې وروستیو کې د چین یوه شرکت د ډونالډ ټرمپ د لوړې پر ورځ د ډیپ سیک په نوم د مصنوعي ځیرکتیا یو چټبوت مارکېټ ته وړاندې کړ چې شاوخوا لسو ورځو کې یې امریکایي شرکتونه یو ټرېلیون امریکایي ډالره تاواني کړل. دا دومره پیسې دي چې د افغانستان د کلنۍ پراختیایي او عادي بودیجې شاوخوا دوه سوو کلونو یا دوو پېړیو ته بسنه کوي. یوازې په ٦ میلیوني لګښت خپل سیال ته تر یو ټرېلیون ډالره زیان اړول، بیخي معجزه ده.

د بحث اصلي موضوع ته راستنېږم چې ټیکنالوژي په تېزۍ خپله لار باسي، مخکې او وروسته نه ګوري. د انسانانو سیاسي، فرهنګي او اقتصادي ژوند لوري بدلوی. آن د اې.ای. ځینې متخصصین په وهم کې دي، چې بالاخره د نړۍ واګې به روباټان په لاس کې واخلي او تر ممکنې کچې باید دا پرمختګونه ودرېږي او یا هم مهار شي. دا اندېښنې پر ځای دي، نوره نړۍ کې میلیونه خلک د همدې انساني روباټونو له لاسه بې دندې شول.

راځئ اوس وګورو چې موږ له ټیکنالوژۍ څومره پر ځای ګټه اخلو او څومره یې خیر رارسېدلی دی. زما د اټکل له مخې په افغانستان کې ډېر کم خلک له ټیکنالوژۍ سره شعوري او موخیز چلند کوي او موخې ترې لري؛ خو نور بې موخې او توکلي چلېږو.

ټیکنالوژیک وسایل بې پرې دي، دا موږ یوو چې څنګه یې کاروو. همغه د ذاکرنایک خبره چې ټکنالوژي چاقو دی، موږ یو چې ځان او بل پرې ژوبلوو او که د مڼو او خټکیو لپاره یې کاروو.

د ټکنالوژۍ بېځایه کارونې زموږ له لاسونو کتاب هم تروړلی. تسبیح یې هم رانه اخیستې. کتاب خو په ټوله مانا دفن شوی. راځئ چې ټکنالوژیک وسایل بامانا وکاروو، خپلې کورنۍ، ورځنیو چارو ته وخت ورکړو، کتاب له څنګه لرې نه کړو او یوازې په مشخص وخت او مشخصې موخې لپاره موبایل او لپټاپ ته پناه یوسو.

# د سرطاني ناروغۍ د زیاتېدو په اړه اندېښنې په زیاتېدو دي

وحیدالله هڅاند



د روانې فبرورۍ میاشتې ۴ مه نېټه د سرطان ناروغۍ نړیواله ورځ وه، خو په ډېرې خواشینۍ سره سږکال افغانستان کې دغه ورځ داسې مهال را رسېږي،چې له تېر کال راهیسې پر سرطان د اخته افغانانو شمېر زیات شوی او تېر کال د ټول هېواد پر کچه په سرطان د اخته کېدو له ٦ زرو زیاتې مثبتې پېښې ثبت شوې دي.په همدې موده کې بیا نږدې ۴۲زرو کسانو چې وړاندې او یا هم تازه پر سرطان اخته شوي، روغتیایي مرکزونو ته یې د درملنې په موخه مراجعه کړې ده.

لکه څرنګه چې پر نړیواله کچه د سرطان ناروغۍ پېښې ورځ تر بلې زیاتېږي، افغانستان کې هم د تېر پرتله د دغې ناورغۍ پېښې ډېرې شوې. پر نړیواله کچه د پېښو زیاتېدو یو علت هم دا دی، چې اکثریت خلک له دخانیاتو ګټه پورته کوي، منظم غذایي رژیم نه لري او له ټولو ستونزمن شی د الکولو کارونه ده. په افغانستان کې هم ځینې علتونه دي چې له امله یې د سرطان د پېښو ګراف پورته وړي.

په دې اړه د عامې روغتیا وزارت وایي، پر سرطان د اخته کسانو د درملنې په موخه د منظمو خدمتونو وړاندې کولو په هڅه کې دي او په همدې موخه په راتلونکې کې په کابل کې د سرطان د یوه ۲۰۰ بستریز او په ننګرهار کې د ۵۰ بستریز تخصصي روغتون د جوړولو خبر ورکوي.چې دا هڅې د ستاینې وړ دي او له دې لارې به موږ وکولی شو په زونونو او مرکز کې د سرطاني ناروغانو لپاره منظم روغتیايي مراکز ولرو، ترڅو دوی ته خدمات وړاندې کړي.

اوس د سرطاني ناروغیو پېښې له غربي، شتمنو او صنعتي هېوادونه څخه د بېوزلو هېوادونو په لور د خپرېدو په حال کې دي. د سرطاني ناروغیو پېښې په نړیواله کچه د شلمې پېړۍ په وروستیو دیرشو کلونو کې دوه چنده شوې او داسې پټیل کېده چې دا شمېره به تر ۲۰۲۰ م کال پورې یوځل بیا دوه چنده شي او تر ۲۰۳۰ م کال پورې به درې چنده شي. په څېړنو کې وړاندوینه شوې چې تر۲۰۲۳ م کال پورې به د سرطاني ناروغیو تشخیص شوې پېښې کابو ۲٦،۴ میلیونه ته ورسېږي چې له دې جملې څخه به ۱۷ میلیونه کسان خپل خوږ ژوند له لاسه وکړي.

داچې د سرطاني ناروغیو د زیاتېدو په اړه اندېښنې ورځ تر بلې زیاتېږي او تر اوسه په هېواد کې د دغه کړوونکې ناروغۍ د مخنیوي په اړه څنګه چې لازمه ښکاري هېڅ کومه هڅه او حل لاره نه ده ټاکل شوې، نو د حکومت او رعیت دواړو مسئولیت جوړېږي، چې یو له بل سره همکاري وکړي، هغه داسې چې ملت د چاپېریال په پاک ساتلو کې رغنده رول ولوبوي، تر څو په راتلونکي،خپل ځای او د ټولنې ټول وګړي له بېلابېلو ناروغیو څخه وژغوري او حکومت هم په دې برخه کې ډېر اهم مسئولیت لري، چې د دغې شان کړوونکې ناروغۍ په مخنیوي کې ګړندۍ هڅې پیل کړي او هغه څه چې د سرطاني ناروغۍ لامل کېږي، په کلکه یې مخنیوی وکړي، په څنګ کې ورسره روغتیایي مراکز پرېمانه کړي، چې د سرطاني ناروغیو درملنه په کور د ننه په ډېرو کمو مصارفو تر سره کړي او هېڅکله د دې اړتیا نه وي، چې دوی له هېواده بهر د سرطان ناروغۍ د علاج او یا درملنې لپاره په ډېره زیاتو امکاناتو سفرونه وکړي.

که څه هم د پرمختللو هېوادونو لپاره سرطان دومره سخته او وژونکې ناروغي نه برېښي، خو د افغانستان په شان په شاته پاتې هېواد کې سرطان د نه درملنې وړ ناروغۍ په توګه ګڼل کېږي. د روغتیایي سکټور د معلوماتو پر بنسټ، هر کال په افغانستان کې تقریباً ۱۹زره ۴۵۰ کسان په سرطان ناروغۍ اخته کېږي، له بده مرغه ۱۴زره ۷سوه ۴٦ وګړي د دې ناروغۍ له امله مري.د عامې روغتیا وزارت هم د دغې ناروغۍ د زیاتېدو پخلی کړی او وایي،چې په کال کې ۲۰ زره تنه د سرطان پر ناروغۍ اخته کېږي، چې هر کال څه دپاسه ۱۵ زره تنه د مرګ تر پولې رسوي.

ډاکټران د بدن سستي، دردونه، کمزوري او سټریا په یادې ناروغۍ د اخته کېدو نښې نښانې ګڼي او زیاتوي، په سرطان له اخته کېدو سره د بدن مقاومت کمېږي او په بدن کې سرطاني سلولونه تولیدېږي.دوی په کور دننه د یادې ناروغۍ پر درملنې د ټینګار ترڅنګ د ناروغانو لپاره د سالم خوراکي رژیم، له نشه یي توکو پرهېز او د ورزش کولو سپارښتنه کوي. په رښتیا هم سرطان یوه خطرناکه او وژونکې ناروغي ده چې لومړنۍ نښې او علایم یې دردونه، خستګي، کسالت او ضعیفي او د وزن کمېدل دي. کله چې دا ناروغي په بدن کې سرایت وکړي، لومړی د انسان د بدن معافیت متأثره کوي، د بدن د معافیت سلولونه تر فشار لاندې نیسي او ورپسې د بدن معافیت صفر کېږي او دې ته زمینه جوړېږي چې د بدن نورو برخو ته هم خپور شي. کله چې د بدن نورو برخو ته سرایت وکړي، په وجود کې یوه کتله رامنځته کوي او بیا دغه کتله په سرطان بدلېږي. ډاکټران دغه راز پر سرطان د اخته کېدو مخنیوي لپاره د خلکو د پوهاوي کچې زیاتول مهم بولي او زیاتوي، په دې برخه کې د عامه پوهاوي د اساسي پروګرامونو تطبیق ته اړتیا ده.

کاریکاتور



# طرح ترمپ برای اسکان مؤقت مردم غزه غیر قابل عملی و محکوم به شکست است

**احمد ضیا سروری**

طرح پیشنهادی دونالد ترامپ، رئیس جمهور جدید امریکا، مبنی بر انتقال ساکنان غزه به مصر و اردن با واکنش شدید منطقه ای و بین المللی روبه رو شده است. باور ها بر این است که این اقدام نه تنها خطر پاک سازی قومی را در پی دارد، بلکه موجب برهم خوردن تعادل منطقه و تهدیدی جدی برای صلح خواهد بود. پیشنهاد ترامپ برای جابه جایی فلسطینیان از غزه به مصر و اردن به عنوان راه حلی برای بحران جاری در غزه، به خصوص در قاهره با مخالفت شدید مواجه گردید. با وجود اینکه دولت کنونی مصر از متحدان لجام گسیخته امریکا در منطقه است، اما این طرح را قویاً رد کرده و هشدار داده است، که اجرای آن می‌تواند ثبات اقتصادی، سیاسی و اجتماعی این کشور را به معرض نابودی قرار دهد. ترامپ پس از گفتگو با السیسی، رئیس جمهور مصر، و ملک عبدالله دوم، پادشاه اردن، ادعا کرد که علی رغم مخالفت‌های آشکار آنان، در نهایت این رهبران حاضر خواهند شد فلسطینیان آواره را بپذیرند. او گفت: فکر می‌کنم السیسی فلسطینیان غزه را خواهد پذیرفت و پاد شاه اردن نیز چنین خواهد کرد. این طرح بزدلانه واکنش‌های شدید منطقه‌ای و بین المللی در قبال داشت، این واکنش ها این اطمینان بر می‌تاباند که طرح و گفته های ترامپ کاملاً افوهات، مبهم و غیر واقعی است. از زمان مطرح شدن این طرح، نگرانی‌های متعددی در منطقه به وجود آمده است. از جمله خطر پاک‌سازی قومی در غزه و تأثیرات مخربی که منطقه را وارد فاز جدیدی از تحولات غیر قابل کنترول خواهد کرد. از سوی دیگر، این پیشنهاد همچنان یاد آور فجایع تاریخی چون حادثه نکبت در سال ۱۹۴۸ است، زمانی که صدها هزار فلسطینی از سرزمین های‌شان رانده شدند و هرگز دیگر اجازه بازگشت نیافتند، وضعیتی که بسیاری آن را مصداق پاک سازی قومی می‌دانند. بدون شک با این رویکرد مخرب، ترامپ یا از این سابقه تاریخی غافل است، یا تصور می‌کند که می‌توان بدون در نظر گرفتن حق بازگشت فلسطینیان، چنین پیشنهادی را مطرح و عملی کرد. در جریان جمع‌آوری اطلاعات در مورد این مسئله، با نظر کوبی مایکل، یک تن از محققین انستیتوت مطالعات امنیت ملی اسرائیل، سر خوردم که تأکید داشت که ایده جابه جایی مؤقت فلسطینیان از غزه را بسیار خطرناک خوانده و آنرا برای آینده اسرئیل ویرانگر خوانده است. او در گفتگوی با نشریه (میدل لاین)، گفت: آوارگی، فقط یک مسئله لوژستیکی نیست؛ بلکه به هویت ملی مربوط می شود. نکبت سال ۱۹۴۸ منجر به آوارگی هزاران فلسطینی شد، در وجدان و سینه اکثریت فلسطینیان حک شده و هرگونه پیشنهاد جابه جایی به عنوان پاک سازی قومی تلقی خواهد شد، نه تنها راه حلی برای تضمین امنیت و بقای اسرائیل نیست، بلکه خصومت ها را افزایش داده و برای اسرائیل در دراز مدت فاجعه ویرانگر به بار خواهد آورد. بعد از مطرح شدن این طرح از سوی رئیس جمهور امریکا، مخالفت های بین المللی نیز با این طرح بلند شده و این مخالفت ها این را غیر عملی نیز ساخته است. اکثریت کارشناسان امور بین المللی به این باور اند، جامعه جهانی از هیچ برنامه ای که جنبه ای پاک سازی قومی داشته باشد، حمایت نخواهد کرد. چون جابه جای فلسطینیان از غزه نه تنها موجب تشدید تنش های منطقه ای می‌شود، بلکه به شدت به جایگاه بین‌المللی اسرائیل آسیب خواهد زد. از سوی دیگر برخی منتقدان نیز این موضوع را نقض آشکار حقوق بشر و تلاش برای پاکسازی قومی در غزه دانسته اند و بر این باور اند که این دستور، نه تنها مشکلات غزه را حل نخواهد کرد، بلکه به وخامت اوضاع خواهد انجامید. این اظهارات و طرح ترامپ در حالی مطرح می شود که در روزهایی که رژیم صهیونیستی با دو نیم کردن قسمت شمالی و جنوبی غزه، به محاصره چند لایه قسمت شمالی باریکه غزه مشغول بود، حدود ۵۰۰ هزار تن در منطقه شمالی نوار غزه ساکن بودند. شایان ذکر است می توان یکی از مولفه های پیروزی مقاومت غزه ناتوانی رژیم صهیونیستی در مقابل مقاومت ساکنان غزه برای تخلیه این مناطق دانست. از جانب دیگر، رژه های نظامی و نمایش قدرت حماس، در میدان های اصلی نوار غزه در جریان تحویل دهی گروگانان اسرائیلی در چند روز پسین نیز نشان داد که حماس کاملاً در غزه پر قدرت، به صورت فعال و زنده حضور دارد و صحبت از تعیین زعمای آینده غزه کاملاً بی معنی و توهم بیش نیست؛ چون تنها حماس است که حرف اول و آخر را می زند، غزه نیز در آینده توسط همین جریان مقدر که در جنگ پانزده ماهه همه پلان‌های شوم و طاغوتی اسرائیل و حامیان شان را به خاک یکسان کرد، اداره خواهد شد. از این رو، هرگونه اقدامات نظامی برای تطبیق این طرح زهراگین در نتیجه ایستادگی نیروهای مقاومت محکوم به شکست بوده و به روی کاغذ باقی خواهد ماند.

# هغه آوازې او ګنګوسې چې په دې وروستیو کې خپرې شوې

**خالد تسل**

لومړی خو په دې باید پوه شو، چې د تاریخ په اوږدو کې د هرې حقپالې ټولنې خلاف بې شمېره کسان په رنګا ـ رنګه بڼو او بهانو بانـدې د حقاني ټولنې د فعالیتونو مخ ډب کړې او پوره هڅه یې کړې چې حق دې تر شا پاتې وي ؛ خو الهي تقدیر بیا په هر وخت کې شریري کړی او شریر عناصر د وخت حقپالو ته شرمولي.

په ارګ کې د خپلمنځي جنګ او د ملا برادار آخند د زخمي کیدلو ګنګوسه!: په دې وروستیو کې د ملا برادار آخند د اقتصادي فعالیتونو بهیر خوار پراخ شوی او ګړندی شوی دی، غرب فکرو چې د ملا صاحب اخلاص د وطن په رغونه کې ولید نو یې یوه زړه ګنګوسه چې په هغه وخت کې هم رښتیا نه وه،د دوی یوه خود ساخته آوازه او ګنګوسه یې بیا د دې لپاره راتازه کړه چې د ولسونو تر منځ انتشار پیدا کړي او ولس مصروف وساتي چې د ملا صاحب د آبادۍ د فعالیتونو د لیدلو څخه ناخبره پاتې شي.

د ټرمپ خبره چې باګرام نیسو:

چې مات شوې یو ځل سر وي دلته واورئ!

بیا جګ شوې، سیده شوې نه دی لار ته

ټرمپ له خپل عادت سره سم د دوحې د مذاکراتو رنګه نشه ده چې یو ځل یې مذاکرات وځنډول بیا یې چې کله هغه وخت د یو څو موټر بمونو غږ تر غوږو شو بیا له نشې ووت او مذاکرات یې زموږ د لوړ پوړي پلاوي سره بیا پیل کړل، دا وار هم کله چې په دې نوي کال کې دې کاندید شو نو بیا یې هغه د نشې خبرې تکرار کړې او زیاته یې کړه چې باګرام نیسو. نو لکه څنګه چې مرکزي ویاند مولوي ذبیح الله مجاهد او مرستیال ویاند حمد الله فطرت جلا جلا په خپلو خبرو کې ویلي : باګرام سل کاله وروسته هم نه شي نیولای، دا اډه موږ ته په غنیمت کې را پاتې شوې ده، افغانستان له خپل حریم څخه ساتونکی اسلامي سر سپارلی پوځ او څوتکونه لري، څواکونه یې د ولس خدمت ته د سر په بیه ولاړ دي. بناءً زه دا وایم چې دا د ټرمپ د نورو لاپو ـ شاپو په رکم یوه لاپه ده، ټرمپ به هېڅکله دا تېروتنه تکرار نه کړي،

چې افغانستان ته په بد نظر وګوري، باګرام نیول او افغانستان ته راتګ خو لا لیرې خبره ده . دا ثابته او معقوله خبره ده چې کله د دوو سرېو تر منځ شخړه را منځته شي، بیا یې د زړه زور تر ډېره نه وزي، نو د یو ابر قدرت او بله تش لاس او یو ټوپک والا طالب مبارزه خو بیخي نادره ده چې یو ابر قدرت پرځوي د الله جل جلاله په نصرت ، زموږ او د ټرمپ ترمنځ د ناخوالو یوه اوږده زمانه تېره شوې ، نو کله ـ کله یې په زړه هغه بړاس را ولاړ شي بیا داسې څرګندوني کوي. دا د ټرمپ د زړه زور دی خو دا به ده ته زیات زیان ځکه ورسوي، چې امریکا کې اوس ولسونه د دوی پر جنایتونو آګاه شوي ، په افغانستان کې به د دوی د دې ناکامې جګړې د زیانونو محاسبه به ورسره وکړي او داسې نور...

د دې راغلي اسلامي نظام رنګېدل: دا هم هغه ګنګوسه ده چې په ټولنیزو غربي او تامي رسنیو کې کشته ـ پورته کېږي،نو هغه نظام او دولت به څنګه چپه کېدای شي چې خپله د اختلاف د پرېکون لپاره رامنځته شوی دی، هغه وخت چې داخلي جګړې او ملوک الطوایفي وه د امارت د بنسټ ډېره کېښودل شوې، نو د امارت پیغام دوی ته دا دی چې اختلاف ته لمن وهل به مو سرونه وخوري، دا اوتې ـ بوتې هېڅ په درد نه خوري، هسې په دې سره خپل شخصیتونه مه اغېزمن کوئ او اوس مو په دغه غبرګونو سره اصلیت او حقیقت ولس ته معلوم شوی، ولس به په تېرو جنایتکارو څېرو د بیا واک باور ونه کړي.

# د افغانستان زېرمه پانګه

**سلطان جان خاکسار**

له افغانستانه د امریکا د تېښتې او وتنې پر مهال نه تنها دې هېواد او ناټو افغانان قتل عام کړل، بلکې د افغانستان شتمنۍ یې غارت کړې، خپل تجهیزات یې توټه توټه کړل؛ سمدلاسه یې د افغانستان ټوله شتمني هم کنګل کړه او د دې لپاسه یې د افغانستان بانکي سیستم هم د لړزانده او دایمي شنډونې په پار تر بندیزونو لاندې وساته.

دې لیکنه کې به تاسو د افغانستان ملت د هغې شتمنۍ په باب ولولئ چې اوس د امریکا او سوېس په بانکونو کې پرته ده او د افغانستان اسلامي امارت او افغان ملت له لاسرسي لرې پرته ده. موږ وویل چې په افغانستان کې د جمهوریت د سقوط او د امریکایانو تر تېښتې وروسته یاد هېواد د لاس پاکونې په موخه پر یو ډول ناروا او د ټولو نړیوالو اصولو او قوانینو خلاف یې پر اسلامي امارت ډول ډول بندیزونه ولګول.

د یادونې وړ ده چې په نړیوالو بانکونو کې دا ایښې سرمایه د هېچا هم نه ده؛ بلکې دا په افغان ملت او د افغانیو د باثباتۍ او ارزښت په خاطر په نړیوالو بانکونو کې د یو ډول تضمین او پشتوانې د غبنتلتیا په پار له کلونو کلونو راهیسې زېرمه شوې وه.

ویل کېږي چې په دې تضمیني پانګه کې بهرني اسعار، سره زر، با ارزښته لیکونه او سوداګریز چیکونه شامل دي.

یاده دې شي چې هېوادونه هغه وخت بهرني اسعار لاسته راوړي چې صادرات وکړي او په مقابل کې یې بهرنۍ کرنسي یا هم د نړۍ د ډېر اعتبار لرونکي کرنسي ( ډالر ، یورو ، پونډ ) باندې بدلوي او زېرمه کوي یې چې ډېر کله دا زېرمې په سرو زرو هم بدلوي او په مرکزي بانک کې یې ساتي.

د نړیوال بانک شمېرې په ډاګه کوي چې د افغانستان کنګل شوې اوسنۍ ذخیره شاوخوا نهه نیم میلیاردو ډالرو ته رسېږي. د نړیوال بانک د ارقامو له مخې افغانستان دا پیسې له ۶۰ کلونو راهیسې زېرمه کوي او لومړنۍ زېرمه شوې پیسې ۵۰ میلیونه ډالر وي. د افغانستان دغو پیسو په بېلابېلو وختونو کې صعودي او نزولي سیر کړی . په دې معنا چې کله کله به یادې پیسې ډېرېدې او کله کله به کمېدې او ثابت ځای یې معلوم نه و. یعنې دا ټولې شوې او ذخیره شوې پیسې زموږ او ستاسو د ۶۰ کلونو محصول دي. دې پیسو له ۲۰۰۸ زېږدیز کال څخه وروسته صعودي مزل وکړ. د نړیوال بانک د ارقامو له مخې افغانستان په ۲۰۱۹ کال کې د خپلو ملي کرنسیو د زخیرې په پار له ټولو ډېره پشتوانه لرله چې په نړۍ کې یې ۷۶ ځای درلود. د دې نوملړ په لومړي سر کې چین او په وروستي ځای کې کینیا قرار درلود.

د افغانستان د زېرمې شوې پانګې چې ۹.۵ میلیارده ډالره کېږي او د افغانیو پشتوانه ګڼل کېږي، د نیویارک فیډرالي بانک او یو شمېر نوره یې په سویس بانکونو کې ذخیره ده.

ددې ریزرف زېرمې د کنګلېدو زیانونه

یاده دې شي چې دا پیسې د افغانستان دولت او د افغانانو مسلم حق دی او هېڅوک یې تروړلی او کنګلولی نه شي. د امریکا له لوري د زېرمه شوې شتمنۍ کنګل کول په لویه کې د افغانستان پر اقتصادي حالت باندې ژور اغېز پرېباسي.

ددغو زېرمو کنګلول نه یوازې د افغانستان پر حکومتولۍ بده اغېزه پرېږدي، بلکې نړیوال باور زیانمنوي او همدارنګه پر وارداتو هم اغېز کوي او په نړیواله سوداګرۍ کې د راکړې ورکړې په صورت کې او د پیسو په لېږد کې ډېرې ستونزې ایجادوي.

یو بل تر ټولو ستر زیان یې دا دی چې افغانستان تر ډېره پورې پر وارداتو متکي هېواد دی او د افغانستان بهرنۍ راکړه ورکړه په ډالرو باندې ده،نو طبعاً په بازار کې کله کله د ډالرو اندازه کمه شي نو افغانۍ ورسره په اتومات ډول ښکته لوېږي. اوس د افغانستان بانک اړ دی چې وخت ناوخت له خپلې پانګې او زېرمې په میلیونونو ډالر بازار ته عرضه او تزریق کړي. که دا حالت خدای مه کړه دوامداره شي نو لیرې نه ده چې د افغانستان بانک ډالري زېرمه به هم کمېږي او یا به حتی خلاصېږي.

په اوس وخت او تل د افغانستان بانک له ټولو ستره دنده دا ده چې د افغانیو ارزښت لوړ وساتلی شي او د اجناسو په بازارونو کې د نوساني حالت مخنیوی وشي.

بله دا چې د پیسو په کمښت او مشتریانو ته پر وخت د پیسو نه ورکړه مشتریان دې ته مجبوروي چې پیسې په بانک کې ونه ساتي او شته پیسې هم له بانکونو څخه راوباسي.

د اسلامي امارت او ټول افغان ولس هیله هم دا ده چې د افغانستان یاده بانډه او یرغمل شوې پانګه باید ازاده شي تر څو په هېواد کې د هر ډول ناورین مخه پرې ونیول شي.

دا کنګل شوې شتمني د افغانستان بانک سرمایه ده چې د افغانۍ د ارزښت ساتلو په خاطر نړیوالو بانکونو او مالي موسساتو کې ایښودل شوې له دې سرمایې په هېڅ صورت کې د عادي او انکشافي بودیجې لپاره ګټه نه اخیستل کېږي او نه هم اخیستل کېدی شي.

باید دلته یو بل سوتفاهم هم له منځه ولاړ شي او هغه دا چې له دې پیسو نه د دولتي کارمندانو او نه هم د نورو پروژو د تطبیق په موخه کار اخیستل کېدی شي.

اقتصادي بندیزونه د هیچا په ګټه نه دي تر دې چې دا خپله نړیوالې ټولنې ته هم یو سرخوږی دی، چې په افغانستان کې د بشري ناورین راتلو سره به دوی هم خوندي پاتې نه شي .

یوه موضوع باید واضح شي چې که خدای کول پر دې کنګل شوې شتمنۍ یوه ورځ بندیزونه لیرې هم شي نو باید له دې پیسو د یوه سنجول شوي او پلان شوي میکانېزم له مخې ګټه واخیستل شي ځکه د همدې ریزیرف شوې شتمنۍ موجودیت دی چې د افغانۍ قیمت یې لوړ او برقرار ساتلی. که له همدې پانګې خدای مه کړه ناوړه استفاده وشي نو په دې معنا چې موږ خپله زېرمه او په دریم ځای کې ایښې تضمین هم له لاسه ورکړ او بیا په دې نړیوال کلي کې خپله سرمایه نه لرو.

د دولتي بودیجې لپاره له نورو سرچینو څخه کار واخلي او د عادي او انکشافي بودیجې لپاره د نړیوالو مرستې را جلب یا هم په کور دننه د بودیجې د تمویل لپاره سرچینې پیدا او کار وکړي .

په لنډو ټکو کې وایو چې دا کنګل شوې شتمنۍ په هېڅ صورت د افغانستان د بودیجې برخه نه ده او نه هم باید د ملي بودیجې په نظر ورته وکتلی شي؛ بلکې دا هغه پیسې دي چې لسګونو کلونو کې پرې کار شوی او په نړیوال کلي کې د یوه نرخ او تضمین په توګه ذخیره شوي دي. دا ښه خبره ده چې باید دا پیسې نور له کنګلېدو وایستل شي خو دا په هېڅ صورت لازمه نه ده چې دې شتمنۍ ته د اضافي پانګې نظر وشي. البته دا هم کېدی شي چې دا پیسې پر کار واچول شي او لا ډېره ګټه ترې ترلاسه شي.

بیا هم وایو چې ددې پیسو کنګل پاتېدل د هېچا په ګټه نه دي؛ خو اسلامي امارت دې د اوس لپاره په هر ډول وي، نړیوالې مرستې راجلب، ډالر دې زیات کړي او د لویو پروژو په پلې کېدو سره به نه یوازې افغان ځوانان پر کار بوخت شي؛ بلکې افغانانو ته به لویې هوساینې هم رامنځته کړي.



# لوبو ولې د اسلامي ارزښتونو ځای نیولی؟

**حسان مجاهد**

د کرېکټ لوبه چې سلګونه کاله پخوا رامنځته شوې ده، یوازینی هدف یې دادی چې مسلمان ځوانان له ګټورو کارونو بې پروا کړي او په عبثیاتو یې اخته کړي، د ځوانانو له زړونو څخه د جهاد مینه او په دین باندې د ځان قربانولو جذبه ختمه کړي او په زړونو کې ورته د خواهشاتو او عبثیاتو مینه وکري. اسلام هغه دین دی چې لوبې او تفریح ته یې اجازه ورکړې، خو په دې شرط چې لوبه په اسلامي چوکاټ کې ترسره شي او لوبې ته د لوبې په سترګه وکتل شي.

که لوبه په داسې توګه ترسره شي چې د الله تعالی حکمونه لکه(لمونځ، د مور او پلار خدمت، دیني زده کړه او داسې نور کارونه) تر پښو لاندې شي، بیا دا ډول لوبه اسلام نه خوښوي.

که لوبه دې حد ته ورسېږي چې د ځوانانو دیني احساسات او دیني جذبه کمزوري کړي، لوبه د ژوند هدف وګرځوي، دومره مینه یې ورسره پیدا شي چې له هر ضروري کار ورته تېر وي، لوبې ته په زړه کې دومره ځای ورکړي چې د بایللو په وخت کې د ژور خپګان احساس کوي او بې دریغه اوښکې تویوي، بیا نو دا لوبه نه بلکې دا یو ارزښت ګرځېدلی او داسې ناوړه ارزښتونه هغه څه دي چې د اسلامي امت د زوال سبب ګرځي.

یو شپاړس کلن ځوان چې په خارج کې مسافر و، کله چې د لوبې په بایللو خبر شو نو له ډېره خپګانه زره ترکی شو او مړ شو، ایا که تر قیامته موږ لوبې وګټو د دې ځوان قیمت پیدا کولای شو، آیا ځوان دې ته وایي چې د جهاد په لاره کې خپل روح وسپاري او که ځوان دې ته وایي چې د کرېکټ لپاره خپل روح قرباني کړي.

بلـه خبره دا چې د کرېکټ لوبه د مسـلمانانو په تاریخ او کلتور کـې هېڅ ځای نه لري، د مسلمانانو لوبې خو معلومې دي. مسـلمانانو به اسونه ځغلول، د تورو او نېزو مقابلې به یې کولې، نښـه به یې ویشتله، لامبو به یې وهله او پهلواني به یې کوله، چې هم به ساتېري وه او هم به د جهاد تمرین وو.

لطف الله خیرخواه لیکي:

ما ډېر ویښ زلمیان ولیدل چې د کرېکټ په خوب ویده شـول، هغه ځوانان مې ولیدل چې مخکې به له کوم انګرېزي کافر سـره په جنګ اخته وو، خو وروسته یې د هغه کافر عکس په سینه لګولی وو.

ما و لیدل، چې د کرېکټ د سیالۍ لپاره درسونه او مکتبونه شاړ شول.

ومې لیدل، چې د کرېکټ لپاره مسجدونه خالي شول.

و مې لیدل چې اسـتادانو په سـاعتونو ساعتونو خپلو شـاګردانو د کرېکټ په اړه وغږېدل او درسونه یې پرېښوول. ومې لیدل، چې شاګردانو په کوڅو او لارو کې هغه نخرې وکړې، چې په کرېکټ کې یې لیدلې وې.

ای د کرېکټ مینوالو تاسو ته شرم نه درځي.

پخوا به اوولس کلن ځوان د جهاد لپاره د لښکرونو رهبري کوله، پخوا به شپاړس کلن ځوان د جهاد په صف کې د پښو په ګوتو ځان جګ ښوودل تر څو په جهاد کې یې قبول کړي او په نن زمانه کې تاسو ځوانان د جهاد اتلان نه، بلکې د کرېکټ اتلان ګرځېدلي یاست.

اسامه بن زید رض ته رسول الله ﷺ دیو لښکر مشري په داسې حال کې ور وسپاره، چې عمر یې ۱۷ یا ۱۸ کاله و، سره له دې چې په لښکر کې مشران صحابه لکه أبو بکر، عمر وغیره رض هم موجود و.

– عبد الله ابن عمر رض ته په ۱۴ کلنۍ رسول الله ﷺ داحد د غزا اجازه ورنه کړه، خو په ۱۵ پنځلس کلنۍ کې یې د خندق غزا اجازه ورکړه.

– رسول الله ﷺ عمیر بن ابي وقاص رض دبدر له غزا څخه د ماشوموالي له امله راوګرځول، خو ده وژړل او بېرته یې د تګ اجازه ورکړه.

– ابوجهل لعین تقریباً د دوو څوارلس کلنو ماشومانو په لاس مردار شو.

–زبیر بن عوام رض ۱۲ کلن ماشـوم و چې له رسول الله ﷺ څخه یې په توره دفاع کوله، چا چې به ولید نو به یې په تعجب سره وویل «له هلک سره توره ده!»

–طلحه ابن زبیر رض د ۱۶ کلونو و چې له رسول الله ﷺ سره یې په مرګ بیعت وکړ او په خپل ځان یې له رسول الله ﷺ څخه دفاع کوله.

– عتاب بن اسـید رض ته په ۱۸ اتلس کلنۍ کې رسـول الله ﷺ د مکې مکرمې مشري ور وسپارله.

– سعد ابن ابي وقاص رض چې په لومړي ځل د الله تعالی په لار کې غیشی ویشت او رسول الله ﷺ ورته «ارمي فداک ابي وامي» کلمې ویلې؛ عمر یې فقط ۱۷ کاله و.

– داحد په غزا کې رسـول الله ﷺ سـمره بن جندب او رافع بن خدیج د ماشوم والي له امله ځواب کړو، خو سـمره ته یې بېرته اجازه ورکړه (یا له دې امله چې ښـه ویشتونکی و، یا یې د ګوتو په سرو د درېدو له تدبیره ځان لوی ښودلی و) رافع وژړل چې ولې یې زه شاته کړم او سمره ته یې اجازه ورکړه، له هغه وروسته یې دواړو ته اجازه ورکړه.

– سعد ابن ابي وقاص رض وایي: د بدر په غزا کې مې خپل ۱۴ کلن یا ۱۶ کلن ورور «عمیر» ولید چې په لښـکر کې پټ و، ما ترې وپوښـتل: ولې پټ یې؟ ده راته وویل: د دې لپاره چې رسول الله ﷺ مې ونه ویني او له غزا څخه مې په شا نه کړي؛ ځکه زه غواړم شهید شم!

– عبد الرحمن الناصر چې په اندلس هسپانیا باندې حاکم و؛ عمر یې ۲۱ کاله و.

– محمد الفاتح رح په ۲۲ کلنۍ کې قسطنطنیه(اوسنی استامبول) فتحه کړ.

– محمد بن قاسم ثقفي رح په ۱۷ کلنۍ کې سند او هند فتح کړو او په ۲۴کلنۍ کې شهید شو.

کیسه یې داسې ده.

د مسلمانانو یوه کشتۍ حج ته را روانه وه، ډېرې داسې ښځې په کې وې چې مېړونه یې په جهاد کې شهیدان شوي وو. دا کشتۍ دښمنانو ونیوله او مسلمانې ښځې یې بې عزته کړې، له دغه ښځو څخه د ناهید په نامه یوې ښځې ناره کړه: «ای حجاج پاچا! موږ له دښمنه وژغوره!» د (زبیر) په نامه یو سـړی چې له غلو څخه په تېښته بریالی شوی و، د مظلومې ښځې(ناهید) سوې ناره یې حجاج بن یوسف ته ورسـوله. حجاج ۱۷ کلن قهرمان ځوان محمد بن قاسم تیار کړ چې ورشه له کفارو انتقام واخله، ۱۷ کلن محمد بن قاسم را روان شو، د سیند، هند، بنګلدېش او پاکسـتان ښارونه یې ټول فتح کړل او د ښار له نیولو وروسته یې سمدستي د هغو مسلمانو ښـځو او نارینه وو د ځای پوښتنه وکړه، چې غلو نیولي وو، هغوی یې پیدا کړ او بیا یې ازاد کړل. نن د ناهید په شان ډېرې مسلمانې ښځې د کفارو په زندانونو کې پرتې دي لکه د پاکستان مظلومه خور عافیه صدیقه چې د امریکا په زندانونو کې د بې وسۍ شپې تېروي، خو بدبختانه داسې ځوانان نشته چې د دغو مظلومو خویندو غږ واوري.

یو شاعر وایي.

ته چې تـرې امېـد د محـمـد ابـن قـاسـم کـوې
مست هغه ځوانان دي په کرېکټ؛ عافیې مه ژاړه!

نو ای مسلمانه ځوانه ، دا خپله ځواني په عبثیاتو مه بربادوه، دا د ځوانۍ قوت په عبادت مصرف کړه، دیني علم حاصل کړه، کتابونه ووایه، پر ځان کې کمال پیدا کړه چې ځان هم بسیا کړې او نورو مسلمانانو ته هم ګټه ورسوې.

هر ځوان باید له خپل ضمیر سره فیصله وکړي چې ولې موږ د لوبغاړو ملت شو، په داسې حال کې چې موږ خو د «اقرأ» (لیک لوست) ملت یو.

# مزیت برجسته اطاعت، استحکام نظام شریعت است

**محمد مجاهد**

اسلام بـه صـورت عمـوم و مذهـب مطهـری حنفـی بـه صـورت خصـوص بـر اطاعـت از اولـی الامـر تأکیـد بـه سـزایی دارد.

جمع و جمیعتی بزرگی از علمای دینی و متخصصـان شـریعت غـراء محمدی که در حقیقـت و بـه جـرأت می‌تـوان چنـان مجموعـه‌ای را «اجمـاع امـت» برشـمرد، کـه بـدون شـک از جملـه مبانـی چهـار گانـه اسـتنباط احـکام و مأخـذ شـریعت مـی باشـد.

ضمنـاً می‌تـوان عنـوان «شـورای حـل و عقـد» را بـرای چنـان مجموعـه هـای تجویـز نمـود.

پـس از دوره سـوم تشـریع اسـلامی شـاد تریـن و ممتازتریـن فیصلـه هـای عـاری از خطـاء مصـدوره اجمـاع امـت بـوده و هسـت.

بنابرایـن جمـع بزرگـی از علمـای دیـن و مجاهدیـن راسـتین افغانسـتان، بـه اتفـاق نظـر شـیخ الحدیـث و القـرآن مولـوی هبةاللـه حفظه‌اللـه تعالـی را بـه عنـوان امیرالمؤمنیـن برگزیدنـد.

لـذا اطاعـت از امیرالمؤمنیـن بـر همـه‌ی مسـؤلین و اتبـاع « شـهروندان « افغانسـتان واجـب مـی باشـد.

چنانچـه معلـوم و مشـهود اسـت کـه قریـب بـه اتفـاق همـه‌ی فرمان‌هـا، دسـتورات، احـکام و رهنوردهـای امیرالمؤمنیـن از آغـاز منصوبیـت شـان بـه ایـن سـمت منطبـق بـر احـکام خـدا و رسـول اش بـوده و هسـت.

لـذا هیـچ انسـان مکلـف شـرعی بنابـر حجیـت شـریعت اسـلامی و دسـتور دیـن، اجـازه طـرح و تولیـد اختـلاف نظـر را در جغرافیـا و سـرزمین افغانسـتان کنونـی در برابـر امیرالمؤمنیـن حفظـه الله تعالـی نـدارد.

قـرآن کریـم بـه عنـوان کلام الهـی در ایـن مـورد صراحـت دارد ترجمـه: پـس اگـر در چیـزی نـزاع کردیـد آن را بـه خـدا و پیامبـر بـاز گردانیـد.

لـذا اگـر اختـلاف نظـر داریـد، لزومـاً بایـد بـه قـرآن کریـم کتـاب پـروردگار و سـنت پیامبـر صلی‌الله‌علیه‌وآله‌وسـلّم مراجعـه نماییـد.

پـس از مراجعـه بـه ایـن دو منبـع، بـه طـور آشـکار می‌تـوان گفـت، کـه بنـا بـه قرایـن و شـواهد درونـی آیـه مذکـور، هیچ تردیـد و انـکار در مـورد عـدم اطاعـت از امیرالمؤمنیـن باقـی نمی‌مانـد.

در اندیشـه تولیـد شـده از منابـع دینـی و نظـام هـای اسـلامی اولـی الامـر از حاکمیـت سیاسـی آنـان جـدا نیسـت، هـم در بعُـد تفسـیر و تشـریح آموزه‌هـای دیـن و هـم در بعُـد حاکمیـت سیاسـی و قضایـی؛ اطاعـت از امیـر المؤمنیـن مـرادف اطاعـت خـدا و رسـول اسـت و بـه طـور مطلـق واجـب الاطاعـة می‌باشـد؛ چـون هیـچ مـوردی وجـود نـدارد کـه امیرالمؤمنیـن خـلاف حکـم اللـه و رسـول اش فیصلـه نمـوده باشـد.

امـام قرطبـی «متوفـی ۶۷۱ ق» فرمـوده اسـت:

درسـت‌ترین اقـوال در ایـن زمینـه دو قـول اسـت؛ قـول اول: مـراد از اولـی الامـر حاکمان‌انـد، چـون آنـان صاحـب امرنـد و حاکمیـت بـرای آن‌هـا اسـت.

قـول دوم: مـراد علمـای دینـی انـد، چـون خداونـد«ج» فرمـان داده تنـازع را بـه کتـاب خـدا و سـنت پیامبـرش ارجـاع دهنـد و کسـی جـز عالمـان دیـن کیفیـت رد بـه کتـاب خـدا و سـنت رسـول او را نمی‌شناسـد.

قرطبـی قـول دوم (کـه می‌گویـد اولـی الامـر تنهـا عالمان‌انـد) را مـورد قبـول صحابـی جلیـل القـدر مالـک بـن انـس می‌دانـد.

ایـن قـول دایـره وسـیع تـری را در بـر می‌گیـرد و آنـان را شـامل حاکمـان،



سـلاطین، قاضیـان و هـر کـس کـه ولایـت شـرعیه دارد، می‌دانـد.

ابـن الخطیـب متکلـم، مفسـر و فیلسـوف برجسـته حـوزه تمدنـی مـا امـام فخرالدیـن رازی (متوفـی ۶۰۶ ق) بـه ایـن موضـوع توجـه ویـژه داشـته و آنـرا مدلـل سـاخته اسـت.

اللـه تعالـی بـه اطاعـت اولـی الامـر دسـتور داده اسـت.

لـذا تأکیـد امـام فخرالدیـن رازی بـر ظاهـر اطـلاق اطاعـت اولـی الامـر در آیـه اسـت، کـه مقـرون بـه اطاعـت رسـول خداسـت.

علمـای امـت تعییـن اولـی الامـر را از طریـق اجمـاع علمـاء کـه در اهـل حـل و عقـد متبلـور خواهـد می‌شـود، بـا آسـان‌ترین طریـق و کوتـاه تریـن مسـیر و کـم تریـن هزینـه کـه قابـل اجـراء اسـت، معیـن و مشـخص نمودنـد.

اکثـر قریـب بـه اتفـاق همـه‌ی مفسـرین چـه اصحـاب، تابعیـن و تبـع تابعیـن و مفسـرین بـزرگ چـون ابـن کثیـر و قرطبـی تاییـد نمودنـد کـه اولـی الامـر عالمـان و فقیهـان دیـن می‌باشـند.

ایـن موضـوع میـان صحابـه از ابـن عبـاس و جابـر بـن عبدالله نقـل شـده و در بیـن تابعیـن گسـترش یافتـه اسـت، و در رأس آنـان از مجاهـد إبـن جبـر نقـل شـده اسـت.

حاکـم نیشـابوری بـه نقـل از إبـن عبـاس دربـاره اولـی الامـر گفتـه اسـت، کـه آنـان اهـل فقـه و دیـن و اهـل طاعـت هسـتند مـردم را بـه دینشـان آگاه می‌کننـد، آنـان را بـه معـروف امـر و از منکـر بـاز می‌دارنـد از ایـن رو خداونـد«ج» اطاعت‌شـان را واجـب کـرده اسـت.

بنابرایـن فقـدان اطاعـت از اولامـر، کشـور را از درون متلاشـی می‌کنـد.

مـردم مسـلمان افغانسـتان پـس از نخسـتین ایـام فتـح امیـد شـان را بـه امـارت اسـلامی بسـتند و بـه عنـوان یـک آرزو الـی اکنـون در ذهـن مـردم باقـی اسـت.

در سـه سـال و انـدی برخـی پرسـش‌های در ذهـن ملـت بـه وجـود آمـده اسـت، کـه چـرا مبـارزه در برابـر غاصبیـن، فاسـدین و دزدان در نظـام اسـلامی کنونـی بطـی و کُنـد اسـت؟ چـرا اجـرای تطبیـق شـرع مبیـن در انظـار عمومـی کمتـر صـورت میگیـرد؟ و بالآخـره چـرا در نظـام اسـلامی احسـاس عـدم اطاعـت از مافـوق در برخـی مـوارد بـه اذهـان عمومـی تداعـی گـردد؟

اساسـاً ایـن پرسـش هـا، عمـده تریـن نکاتـی اسـت کـه پیرامـون نظـام اسـلامی فعلـی گاهـا در ذهن‌هـا خطـور می کنـد .

بـدون تردیـد اگـر ایـن چنیـن تصـوری در اذهـان عمومـی و بویـژه در میـان برخـی از مامـوران امارتـی بـروز کنـد، افیـون و اشـتباه جبـران ناپذیـری اسـت و می‌طلبـد فـوراً بـه نحـوی سیسـتماتیک و بنیادیـن بـه چنیـن غـرض و مـرض سـرطان آفریـن رسـیدی گـردد.

نگارنـده: مـی خواهـم بـا تعمـق موضوعـی و محتوایـی بـر فقـدان اطاعـت از اولامـر کـه سـبب متلاشـی شـدن نظـام اسـلامی میگـردد.

دو نکتـه را در ایـن خصـوص برجسـته سـازم:

نخسـت نشـأت فقـدان اطاعـت از برخـی کسـانی‌که مشـاهده می‌گـردد، کـه فهـم ریشـه ای و درسـت از مفهـوم نظـام سیاسـی اسـلامی و فراینـد وجـودی آن را ندارنـد.

ثانیـاً اسـتعداد و بصیـرت لازم بـرای حفـظ و گسـترش آن کـه مبتنـی بـر شـرع مبیـن، عنعنـات پسـندیده ملـی و تجربیـات تاریخـی باشـد و آسـیب پذیری‌هـای نظـام اسـلامی را تحلیـل کـرده بتواننـد وجـود نـدارد.

شـایان ذکـر اسـت کـه اختـلاف نظـر و دیـدگاه بـا موضـوع عـدم اطاعـت و پیـروی فرسـخ‌ها فاصلـه دارد.

اختـلاف دیـدگاه در یـک نظـام و یـک کشـور یـک حالـت طبیعـی و یـک واقعیـت انـکار ناپذیـر اسـت، اگـر در طـرح دیـدگاه اختلافـی موضـوع مطـرح شـود، کـه ضمانـت بـرای دسـت یابـی بـه گرایـش و خواسـته هـای شـخصی و محـدود باشـد، چنیـن چیـزی قطعـاً بـه سـود جامعـه نخواهـد بـود و بـرای سـلامتی، بقـاء و حفـظ نظـام اسـلامی خطـر جـدی را همـراه دارد و امنیـت جامعـه را تهدیـد می‌کنـد.

امـا اگـر در طـرح موضـوع منفعـت عمومـی باشـد کـه تهدیـد هـا کاهـش و فرصـت هـا را افزایـش دهـد، بایـد مـورد اسـتقبال و بهـره گیـری قـرار گیـرد و ایـن نکتـه یقینـاً بـه نفـع نظـام خواهـد بـود.

قـدرت سیاسـی و نظامـی امـروزه در افغانسـتان بـه دسـت مجاهدیـن پـاک طینـت و حکیمـان بـا حکمـت ایـن کهـن بـوم و بـر اسـت، بنابرایـن ابـراز نظرهایـی کـه بـه هـر دلیلـی بتوانـد حیثیـت نظـام اسـلامی را تحـت شـعاع قـرار دهـد و فرصـت مضمـون سـازی پـوچ را بـرای توطئه‌هـای گـران فراهـم سـازد، مصلحـت ایـن اسـت کـه اجتنـاب شـود.

توطئـه گـران موریانـه و افیـون نظام‌هـای اسـلامی پنداشـته می‌شـوند، کـه ریشـه از مسـتکبرین گرفتنـد.

برخـی مـواردی کـه افغانسـتان را از ورود بـه دنیـای بـه هـم پیوسـته کنونـی واز معـادلات بین‌المللـی عقـب نگـه مـی‌دارد، بایـد از راه‌هـای مشـروع، تلطیـف شـده و منعطـف معمـول در دوره‌ای مدرنیتـه اسـتفاده نماییـم، تـا عضویـت فعـال و ملمـوس خـود را در دنیـا، تـوأم بـا بصیـرت شرعي و سیاسي حفـظ نمـوده و عقـب نیفتیـم.

در امـارت اسـلامی اطاعـت مبتنـی بـر یـک روایـت، یـک تفکـر، یـک اندیشـه، یـک تفسـیر و یـک فلسـفه پدیـد آمـده و بـه عنـوان یـک تکلیـف شـرعی پیرامـون زیـر مجموعـه هـای و سـاختارهای بنیادیـن نظـام اسـلامی اسـت.

خوشـبختانه در امـارت اسـلامی تصـور عـدم اصـل فرماندهـی واحـد منتفـی اسـت، نظـام هـای مفلـوک ملـک الطوایفـی بـه تاریـخ پیوسـته و امیرالمؤمنیـن حفظـه اللـه تعالـی از قابلیتهـای فـوق العـادهِ رهبـری بـرای اداره نظـام کـه بـا خـون هـزاران شـهید آبیـاری گردیـده اسـت، برخـوردار می‌باشـند.

دشـمنان بـا شـعارهای میـان خالـی و دروغیـن ماننـد حقـوق بشـر حقـوق زن و .... بـه صـورت هدفمنـد و سیسـتماتیک بـه قلـع و قمـع اهـداف اسـلامی مـا برنامه‌ریـزی میکنـد.

الحمـد للـه رهبـران موثـرِ کـه زنجیـره ی منضبـط شـرعی مبتنـی بـر اصـول اسـلامی را دارا می‌باشـند در امـارت اسـلامی حضـور فعـال دارنـد و هیـچ عنصـری نمی‌توانـد تولیـد نفرت،تعصب،تبعیـض، خـود خواهـی، خویـش خـوری، خـود بـزرگ بینـی، خانـواده گرایـی و حـب مـال و ثـروت را در وجـود مخلصیـن و وفـاداران امـارت اسـلامی ایجـاد و تزریـق نمایـد.

تطبیـق شـریعت اسـلامی، تقویـت انگیـزه حماسـه آفرینـی، ایسـتادگی در برابـر هواهـای نفسـانی و اسـتغنای نفـس از اهـداف عمـده‌ای نظـام اسـلامی بـوده و هسـت.

تئـوری و طـرح تولیـد توطئـه کـه مهمتریـن ابـزاری قبیلـه گرایـی مفـرط بـود و توسـط شـوونیسـتهای سـکولار مشـرب گاهـا زمزمـه مـی شـد، ذریعـه ارشـادات حکیمانـه، هدایـات و رهنوردهـای امیرالمؤمنیـن حفظـه اللـه بـه درک واصـل گردیـد.

بـا اطاعـت و پیـروی اولامـر نظـام اسـلامی خویـش میتوانیـم طـرح و تئـوری توطئـه هـای جواسـیس، خـوارج، مسـتکبرین و بُغـات را بـرای همیشـه از سـرزمین مفتوحـه خویـش افغانسـتان عزیـز برچینیـم.

## شعر و ادب

### در آرزوی تو!

**حضرت سعدی «رح»**

در آن نفس که بمیرم در آرزوی تو باشم
بدان امید دهم جان که خاک کوی تو باشم
به وقت صبح قیامت که سر ز خاک برآرم
به گفت و گوی تو خیزم به جست و جوی تو باشم
به مجمعی که درآیند شاهدان دو عالم
نظر به سوی تو دارم غلام روی تو باشم
به خوابگاه عدم گر هزار سال بخسبم
ز خواب عاقبت آگه به بوی موی تو باشم
حدیث روضه نگویم گل بهشت نبویم
جمال حور نجویم دوان به سوی تو باشم
می بهشت ننوشم ز دست ساقی رضوان
مرا به باده چه حاجت که مست روی تو باشم
هزار بادیه سهلست با وجود تو رفتن
و گر خلاف کنم سعدیا به سوی تو باشم

### بیا د الاالله په زمزمو باندې ځواني راغله!

**استاد فضل ولي ناګار**

ما اذان انځور په شور و شرنګ د زنځیرونو کړ
زوړ ختیځ مې بیا ځلمی په مستو تکبیرونو کړ
پرخه مې کوثر کړ د وینو د ګل تندې ته
وړي ورېمه ورېمه پیغام نسیم ولاړ دی منډې ته
سپین کمربند وتاړه سبا راغی تیارو پسې
ځي جوپې جوپې ستوري د لمر په ښاپېرو پسې
شپه په سپیدو وچاوده ځانمرګې شان شپبه راغله
ته ګرېوان څیرې د ناقوس د پیر توبه راغله
بیا زموږ رندانو الستي جامونه پورته کړه
بیا یې په شپېلۍ اسرافیلي غړونه پورته کړه
ډک په شومه دم چې وزرونو د جبریل وکړ
ډکه شوه فضا له جلال سور اور رودنیل وکړ
څومره کلک ګوزار په ابرهه بیا ابابیل وکړ
ټول بوتان نسکور دي د توحید اواز خلیل وکړ
بیا ترې اننګو د زمانې ته رنګیني راغله
بیا د الاالله په زمزمو باندې ځواني راغله

### غزل

**مخبت وردګ**

چې کار او زیار نه وي د نسل په فکرونو باندې
روان به نه شي د خپل تیر برم په پلونو باندې
اختلافات او مادیات چې شاته وانه چوو
موږ به ونه کړو پاچاهي د خلکو زړونو باندې
دا آزادي له موږ نه نور هم ډیر کارونه غواړي
که څه هم قدر یې دې شوی په سرونو باندې
زه باوري یمه چې ژر به یې له لاسه ورکړو
موږ چې کوم قیمت دی ایښی په ګلونو باندې
افغانستان سره مو مل د شهیدانو زور دی
ځکه برلاسی دی په ډیرو قدرتونو باندې
ګوره که ورغلې د تورو غرونو څنګ ته کله
سلام مې وایه د جهاد په سنګرونو باندې
مخبت به څنګه هیروم په وینو لت پت یاران
چې لا یې بوی د وینو شته زما په لاسونو باندې

# جایگاه مسجد در اسلام

**نوری**

ساختن مسجد و برپا کردن نماز جماعت در این دنیا و آن دنیا ثواب جاویدانی و زیادی دارد، که پیامبر اسلام به آن اشاره کرده است. مسجد یکی از مهم‌ترین و تأثیرگذاررترین مکان های مذهبی در جوامع اسلامی است که برای مسلمانان آثار و برکات فراوانی به همراه دارد. از اینروجایگاهی مسجد در اسلام بسیار بلند است. حضور در مسجد باعث رشد و تعالی ایمان، دستیابی به آرامش روحی، خودداری و دوری از گناه، تعلیم و تربیت دینی و آموزش احکام و معارف اسلامی، ارتباط و معاشرت با سایر برادران دینی، تجلی وحدت و همدلی بین مسلمانان، پیشبرد اهداف متعالی دینی و اجتماعی، برطرف کردن مشکلات و معضلات جامعه و نشر و ترویج فرهنگ غنی اسلامی می‌شود. بنابراین، بر همه ی مسلمانان فرض است که به حضور در مسجد و حفظ حرمت و رونق آن اهتمام ورزند و از این برکت و فرصت معنوی در جهت رشد و تعالی خود و جامعه بهره مند شوند. امارت اسلامی از مدت سه سال به این سو در زمینه ساختن مساجد و تشویق مسلمانان به برپاکردن نماز جماعت در آن تلاش‌های همه جانبه را انجام داده است. دفتر مطبوعاتی وزارت شهر سازی و مسکن به رسانه‌ها گفته است که« بنا به دستورعالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله، قرار است که ده‌ها مسجد در شهر کابل ساخته و مورد بهره برداری قرار گیرد. بمنظور تطبیق حکم امیرالمؤمنین حفظه الله، کمیته تخنیکی مشترکی از وزارت ارشاد، حج و اوقاف، وزارت امربالمعروف ونهی عن المنکر، شاروالی کابل و وزارت شهرسازی و مسکن تشکیل شده است، تا برای اعمار مساجد یاد شده ساحات را در شهر کابل مشخص نمایند.» وی افزوده است که«انجنیر محمد یاسین هوتک، مشاور تخنیکی وزارت شهرسازی و مسکن (۹۹) ساحه را در شهر کابل مشخص کرده اند که براساس نیاز در (۵۷) ساحه مساجد ساخته شود.»علمای دین به این باور اند که«کلمه مسجد، با در نظر گرفتن صیغه‌های مختلف ۲۸ بار در آیات قرآن ذکر شده و در اکثر موارد، منظور، مسجد الحرام است که به عنوان اولین عبادتگاه و مسجد روی زمین شناخته شده و به منظور عبادت برای مردم ساخته شده است.» آنها می‌افزایند که« نخستین خانه‌ای که برای مردم (و نیایش خداوند«ج») قرار داده شد، همان است که در سرزمین مکه است،



که پر برکت، و مایه هدایت جهانیان است.» مساجد مخصوص «پرستش ذات یکتای» خداوند است، خدای بزرگ به دلیل اهمیت و فضیلتِ بسیار مسجد بر سایر مکان‌ها، آن را مخصوص به خود بیان فرموده و تماماً متعلق به خود دانسته است؛ تا برتری و فضیلت آن بر سایر مکان‌ها و عمارت ها روشن شود. البته این مقوله ی اختصاص مساجد به ذات خداوندی که پاک و منزه از تمامی صفات حسی و ملموس است، جنبه‌ی نمادین دارد و بیانگر این واقعیت است که مساجد، مکان هایی هستند که مورد عنایت خاص خداوند متعال است، بنابراین، روشن است که نباید در مساجد، کاری جز کار خدایی و فکری صورت پذیرد و اندیشه ای جز خدا در راه مصالح مسلمانان، مطرح شود. روشن است که با این اوصاف، در ساخت و احداث مساجد هم نباید نیتی به جز نیت الهی، و هدفی به جز گسترش و اعتلای کلمه‌ی توحید و عبادت خالصانه داشت. هنگام دعوت مردم به دین اسلام پیامبر«ص» با قوم خود و منافقان با مشکلات زیادی مواجه بود که بعد از مدت زمانی این مشکلات را از سر راه برداشت. ساختن و تعمیر مساجد خداوند«ج» به دست کسانی است که به خدا«ج» و روز قیامت ایمان آورده و نماز بر پا دارند و زکات مال خود را بدهند و از غیر خدا نترسند، پس امید است که از هدایت یافتگان راه خدا باشند. در این آیه از قرآن کریم، خداوند«ج» کسانی را که به آباد کردن مساجد اهتمام می ورزند، دارای صفات پرهیزگارانی معرفی می‌نماید که ایمان به خدا و روز قیامت داشته باشند و نماز بخوانند و زکات بپردازند. این امر حدود محبوبیت آنان را در نزد خداوند متعال نشان می‌دهد و ثابت می کند که مسجد مکانی مقدس و برگزیده است و باید با ایمان و عمل صالح آباد شود. در باره فضیلت حضور در مسجد از پیامبر اکرم «ص» روایت شده است که خدای تعالی فرمود: ترجمه، آگاه باشید که مساجد خانه‌های من در روی زمین هستند، همانگونه که ستارگان برای اهل زمین می‌درخشند، مساجد نیز برای اهل آسمان نور افشانی می‌کنند.»حضرت محمد «ص» فرمود:«مساجد، جایگاه ی پیامبران است.» در جای دیگر می‌فرمایند: مساجد خانه‌های پرهیزگاران هستند، و کسی که مسجد خانه او باشد (مرتب به مسجد رفت و آمد کند) خداوند، آسایش و کامیابی او و عبور از پل صراط را برایش ضمانت کرده است». بنابراین کسانی که در ساختن مساجد و فراهم کردن سهولت برای نمازگزاران در زمستان و تابستان تلاش می‌کنند از ثواب جاویدانی و عظیم بهرمند می‌شوند.

# همدا تاته وایي له دغې کیسه ګۍ یې زده کړه!

**ژباړه: عاکف مهاجر**

پخوا زمانه کې د کبانو تکړه ښکارزن وو، چې هره ورځ به یې یواځې یو ماهی نیولو.

یوه ورځ د یو کب له نیولو وروسته څه لحظه کور کې پاتې شو وروسته د بل ماهي د نیولو لپاره د سمندر غاړې ته وخوځیدلو تر څو په همدغه ورځ یو بل کب هم ښکار کړي.

خو چې یې ښځې هغه تیر ښکار شوي کب پرې کولو ناڅاپه یې په خیټه کې یوه عجیبه ولیدله!

هغه دا چې د کب خیټه کې نا اشنا ملغلره وه، یو دم یې ښځې د الله په پاکي ویلو شروع وکړه.

او نعرې یې کړې

خاونده وه خاونده!

دلته وګوره څه مې پیدا کړل.

خاوند یې وایي

څه څه

کله یې چې په ملغلره سترګې ولګیدلې نو هغه هم نعرې کړې ملغلره ده ملغلره ده کب نیوونکي ملغلره راواخیستله او د ملغلرو پیریدونکي ته یې یووړه کوم چې د دوی په ګاونډ کې اوسېده.

کله چې د تاجر سترګې په ملغلره ولګیدلې ورته ویې ویل زه د دغې ملغلرې د اخیستلو پیسې نه لرم ښار کې د تجارانو سرخیل ته ورشه شاید هغه یې د قیمت توان ولري.

د ملغلرې خاوند د لوی تجار خواته د ښار په لور روان شو او هغه ته یې د کلي د تاجر کیسه وکړه،

خو هغه هم هو بهو د کلي د تاجر خبره ورته وکړه خو ورته ویل یې چې د حل لاره به درته وښیم د ښار واکمن ته ورشه هغه به یې درنه وپیري هغه یې د اخیستلو توان لري،

سړی روان شو د واکمن د قصر تر دروازې ورسېده خپله قیمتي ملغلره هم ورسره وه قصر ته د ننوتلو د اجازې انتظار یې کولو چې د قصر د والي سترګې پرې ولګیدلې، والي ورته و ویل زه د داسې ملغلرو په لټه یم خو زه نه پوهېږم تاته یې څنګه قیمت در پوره کړم مګر زما خاصې خزانې ته به دې وردننه کړم هلته تاته شپږ ساعته وخت دی کوم څه دې چې خوښ شول هغه واخله او همدا ستا د ملغلرې قیمت.

کب نیوونکي و ویل شپږ ساعته زیات دي دوه ساعته یې کړه.

واکمن ورغبرګه کړه نه!

بلکې تاته پوره شپږ ساعته وخت شته ته له خزانې نه په دغه وخت کې هر هغه څیز یوسه چې ستا خوښ وي.

د ماهیانو نیوونکی د والي د خزانې پراخ تالار ته ننوتلو ناشنا منظر یې ولیدلو یو لوی هال چې په درې برخو ویشلی و.

یوه برخه له سرو او سپینو زرو او له نورو قیمتي کانو او ملغلرو ډکه وه.

دوهمه برخه یې په نرمو او پستو فرشونو فرش شوې وه.

هر قسم قالینې په کې شتون درلود، چې په لیدلو به یې سړي ارام احساسولو او خوب به ورتلو.

دریمه برخه یې په خوراکي شیانو ډکه وه هر څیز په کې موندل کیدل.

ښکاري فکر وکړو چې شپږ ساعته خو ډېر زیات وخت دی زما لپاره.

زه باید په دغه وخت کې څه وکړم:

لومړی باید په دریمه برخه شروع وکړم تر څو ښه ډېر خوراک وکړم او د ډېر څه ورلو توان پیدا کړم تر څو ډېر سره زر یوسم.

همداسې یې وکړل هلته لاړ او هلته یې په خوراکونو دوه ساعته وخت تېر کړلو.

وروسته تر دې چې لومړۍ برخې ته راغلو نرم فرشونه یې تر سترګو شول نو ویل یې چې اوس مې زیات خوراک وکړو او په بدن کې یې د سستیا احساس هم وکړو ځان سره یې پریکړه وکړه ولې خوب نه کوم چې د ډېر څه ورلو طاقت پیدا کړم او دغه سستیا هم لرې کړم دا زما لپاره ښه فرصت دی باید ډېر څه یوسم.

او زما به کوم حماقت وي چې دغه فرصت رانه ضایع کړي.

همداسې یې وکړل او دغې برخې ته ورغی څملاستلو او په ښه درانه خوب ویده شو د څه وخت په تیریدلو سره یې اواز واوریدلو چې یو څوک ورته وایي.

اې بیعقله پورته شه وخت دې ختم شو.

تعجب شو ویل یې زما وخت ختم شو ما خو هیڅ هم نه دي اخیستي.

جواب یې ورکړو

ووکې!

ووځه!

ته نور وخت نلرې تا پوره شپږ ساعته وخت تیر کړ او ته اوس له غفلته رابیدار شوې.

او ته د زیاتو ملغلرو طلب کوې، ایا ستا لپاره ښه موقع نه وه تر څو ډېر څه دې وړي وو او ته بهر تللی وې ښه خوراکونه دې پرې کړي وو او ښه نرم فرشونه دې پرې اخیستي وو.

مګر ته بیعقل او ناخبره وې.

اوس ته په دغه کیسه کې مه پاتې کېږه له دغې نه عبرت واخله.

ایا ته خبر یې دغه ملغلره څه وه،

دا ستا روح داسې خزانه چې قیمت نلري.

مګر ته د دغې په قدر نه یې خبر او دغه خزانه دنیا ده لوی والي ته یې فکر وکړه.

راشه او وګوره زموږ ګټې اخیستنې ته له دې نه.

لومړۍ برخه ملغلرې، سره او سپین یې نیک اعمال دي.

او بله برخه یې چې قالینې او نور فرشونه وو هغه زموږ غفلت دی او د خوراکونو برخه یې هغه شهوات د انسان دي.

نو اې زما ښکارزن وروره او د کیسې لوستونکیه!

ایا ستا لپاره ښه وخت نه دی چې له خوبه رابیدار شې او نرم فرش پرېږدې او ته نیک اعمال چې ملغلرې او نور قیمتي جواهر دي مخکې دې راټول کړې چې تاته درکړل شوی وخت تمام شي چې هغه ستا عمر دی.

بیا به ته افسوس کوې او وخت به تېر وي.

# اشغال؛ فکري جګړه او وارداتي ارزښتونه

نجیب‌الله جهادوال / څلورمه برخه

**ښځې او استخباراتي موخې**

د لوېدیځ د فکري جګړې یوه مهمه برخه هم د ښځو آزادۍ او په هغوی کې د بې حجابۍ دودول دي چې د «ښځو حقونو» په نوم یې د تحقق لپاره پراخ پروګرامونه په لاره اچول کېږي. څرنګه چې غرب په ۱۹ او ۲۰پېړیو کې په افریقا، منځني ختیځ او سویلي آسیا کې ګڼ مسلمان ولسونه تر مستقیم او غیرمستقیم اشغال لاندې راوستل، نو د خپل حاکمیت د دوام او مدیریت لپاره یې په مستعمره ټولنو کې د بې دینۍ فرهنګ ترویج یو لړ هڅې په لاره واچولې چې یوه برخه یې هم په مسلمانو ښځو کې د تبرج، بې حجابۍ او آزادۍ احساس ترویج او تزریق و چې د فیمنیزم اصطلاح ورته کارول کېده.

اشغالګرو د خپل دغه پروګرام د تطبیق لپاره لومړی په مسلمانو ټولنو کې ځانګړي لوېدیځ ډوله ښځینه ښوونځي جوړ کړل او ورپسې یې د تحصیلي بورسونو له لارې له همدغو ښوونځیو څخه مستعده مسلمانې نجونې د خپلو هېوادونو ځانګړو پوهنتونونو ته د زده‌کړو لپاره واستولې او په دې ترڅ کې یې هغوی ته داسې روزنه ورکوله چې په بشپړ ډول به یې ذهنونه بدل شول او داسې مهال به یې بېرته خپلو هېوادونو ته راستنولې چې له فکري اړخه به په بشپړ ډول په غربي کلتور سمبالې وې او دا د هغوی د وایسټرنایزېشن ( غربي کولو ) پروګرام مهمه برخه وه.

په افغانستان کې هم د امان الله خان د واکمنۍ پرمهال د سکولرېزم د ترویج په نیت د دغې پروژې د تطبیق هڅې پیل شوې او یو شمېر نجونې له شرعي محرم پرته بهرنیو هېوادونو ته د تحصیل لپاره واستول شوې. که څه هم هغه مهال دغه ډول اقدامات په افغانستان کې د ملت له سخت غبرګون سره مخ شول خو په ځینو نورو هېوادونو کې دغه پروژه د اشغالګرو هېوادونو د پلانونو مطابق پر مخ لاړه او د هغوی په ګټه یې ښې پایلې ورکړې.

د دغو پوهنتونونو فارغانو چې ځانونه د ښځو د حقوقو مدافع ګڼلې او له ټولو ډېر ټینګار یې د غربي فرهنګ مطابق د ښځو حقونو پر اعادې وو، نو په مستعمره ټولنو کې یې د هغوی د اشغال دوام لپاره ښه بستر برابر کړ، څکه چې دغه غرب‌ځپلې ښځې به چې له غربي کلتوري او استخباراتي کړیو سره تړلې وې او د هغوی له‌خوا تمویلېدې، په مسلمانو ټولنو کې یې د ښځو حقوقو، بشري حقوقو، ډیموکراسۍ او پرمختګ غولوونکو شعارو سره بېلابېل فعالیتونه پیل کړل او د پراخو امکاناتو په درلودلو سره یې په مطبوعاتي برخه کې ګڼې مجلې او اخبارونه خپرول او په وریا توګه به یې پر خلکو وېشل چې په دې کار سره یې په ځینو ټولنو کې پراخ نفوذ پیدا کړ او زیات شمېر خلک په تېره بیا ځوانان او نجونې یې پر ځان راټولې کړې.

لوېدیځ اشغالګرو د دغه پروګرام په پایله کې په مسلمانو ټولنو کې د ښځو آزادۍ په نوم داسې خوځښتونه تشکیل شول چې له دین او د ټولنې اصیل کلتور سره یې هیڅ اړخ نه لګاوو، لکه:

- د پاریس د سوربن پوهنتون فارغ التحصیلې فاطمه مرنیسي له‌خوا د مراکش د ښځو تنظیم تأسیس؛
- د دویګو آسنا په مشرۍ د ترکیې د ښځو غورځنګ تشکیل؛
- په سوریې او لبنان هېوادونو کې« المجمع النسائي العربي »سازمان؛
- په ایران کې د مهناز افخمي په هڅو د «سازمان زنان ایران »؛
- په تونس کې د ډیموکراتو ښځو ټولنه؛
- په عراق کې د ښځو تحریر ټولنه؛
- په مصر کې د ښځو آزادۍ او فیمنیزم تحریک؛
- او داسې نورې خورې ورې ډلې چې ټولې بیا د «ختیځ د ښځو کنګرې » په نوم اتحاد له‌خوا اداره کېدلې.

له دې سره هم‌مهاله لوېدیځوالو له بېلابېلو دسیسو څخه په استفاده هڅه وکړه څو دغه نوي راټوکېدلي خوځښتونه او ستړماتې ښځې په نړیواله کچه مطرح کړي او د مسلمانانو د نوي نسل لپاره یې د تقلید مرجع وګرځوي. په دې لړ کې بېلابېلو غربي ادارو د ښځو آزادۍ فعالینو لپاره تشویقي جایزې وضعه کړې او د هغوی لپاره یې غولوونکي او غیر واقعي القاب وکارول څو په دې لاره کې نورې ښځې هم فعالیت ته وهڅول شي او د هغوی لار تعقیب کړي .

دغو سازمانونو د لوېدیځ استعمار د یو منظم پروګرام له مخې په خپلو ټولنو کې له دین او کلتور څخه د مسلمانانو ښځو د انحراف او غربي کلتور د ترویج لپاره پراخې هڅې وکړې. که څه هم دغه هڅې په ځینو هېوادونو کې له ماتې سره مخ شوې او مسلمانو ولسونو یې پر وړاندې غبرګون وښود، خو په ډېرو نورو مسلمانو ټولنو کې یې خورا زړه بوږنوونکې پایلې درلودې او د ټولنو د بې‌سترۍ او بې‌لارۍ لامل شوې.

د بېلګې په ډول د دغو ټولنو د فعالیت په پایله کې په تونس اسلامي هېواد کې اوس ښځې دا حق لري چې خپلو مېړونو ته طلاق ورکړي، چې دا له اسلامي ارزښتونو څخه بشپړ تناقض او سرغړونه ده،په مصر او یو شمېر نورو اسلامي هېوادونو کې هم دې ته ورته قوانین نافذ شول.

غربي اشغالګر پوهېدل چې د ښځو فساد د ټولنې فساد او د هغوی اصلاح بیا د ټولنې اصلاح ده، له همدې امله یې په افغانستان کې هم د خپل حضور پرمهال له خپلو تېرو تجربو او پلانونو څخه په استفادې غربي پالنې ته د ښځو هڅونې په موخه پراخ پروګرامونه په لار واچول او د هغوی د ټولنیز انحراف لپاره یې هڅې پیل کړې. څرنګه چې د افغانستان بیارغاونې برخه کې د امریکا پلټونکې ادارې (سیګار) د ۲۰۲۱کال د فبروري میاشتې په ریپورټ کې ورته اشاره کړې، یوازې متحده ایالتونو د ۲۰۰۲ ــ ۲۰۲۰کلونو په ترڅ کې د ښځو او جنډر مساواتو په برخه کې ۷۸۷.۴میلیونه ډالر ولګول چې په دې برخه کې د فرانسې، جرمني او بریټانیا په‌شمول د نورو غربي او سیمه‌ییزو هېوادونو له هڅو او پانګونې څخه هم سترګې نه‌شي پټېدی څکه ټولو هغو هېوادونو چې په تېرو دوو لسیزو کې یې په افغانستان کې نظامي او غیرنظامي حضور درلود، د ښځو ورتیا ورکوونې او مشارکت په نوم بېلابېلې پروژې تطبیقولې او په دې برخه کې یې په میلیونونو ډالر پانګونه وکړه.

په دې لړ کې له بن کنفرانس څخه نیولې تر لندمهالې، منځمهالې او انتخابي حکومتونو پورې، په ټولو برخو کې د ښځو پراخ مشارکت او له دې لارې په افغاني ټولنه کې د غرب د اصولو پربنسټ د ښځو حقونو اعادې او آزادۍ لپاره پراخ پلانونونه او پروګرامونه طرحه شول او یو شمېر سترماتو او له غربي کلتور څخه اغېزمنو ښځو ته په سیاسي برخه کې د فعالیت زمینه برابره شوه. د بېلګې په ډول د بن کنفرانس له ۲۴ تنو غړو څخه دوه تنه هغه یې مېرمنې وې (امینه افضلي د شمالي ټلوالې په استازیتوب او سیما ولي د بن ډلې په استازیتوب) او له ۳۷ غیر رسمي غړو څخه یې هم درې تنه ښځې وې ( رنا یوسف منصوري، صدیقه بلخي او فاطمه ګیلاني). په دې توګه د دغه کنفرانس له ۶۱تنو رسمي او غیررسمي غړو څخه پنځه هغه ښځې وې. له همدې امله د دغه کنفرانس د هوکړه‌لیک پر بنسټ د لومړي ځل لپاره د سیما سمر په نوم یوه غرب‌ځپلې مېرمن د لندمهاله حکومت د مشر د مرستیالې او د ښځو چارو د وزیرې او ډاکټر سهیلا صدیق په نوم بله مېرمن د عامې روغتیا وزیرې په توګه په کابینه کې شاملې شوې.

همدارنګه د بیړنۍ لویې جرګې د غوراوي په کمېسیون کې چې د منځ‌مهاله حکومت مشر د ټاکلو لپاره رابلل شوې وه، درې تنه ښځې ( د کابل پوهنتون د حقوقو پوهنځې استاده محبوبه حقوق مل، د افغانستان د ښځو ټولنې مشره ثریا پرلیکا او حمیرا نعمتي) شاملې وې. د دغه کمېسیون د پرېکړې پربنسټ ۱۵۰۱تنه د جرګې غړیتوب لپاره وټاکل شول چې ۱۶۰تنه یې مېرمنې وې.

له دې سربېره د ۱۳۸۲کال په اساسي قانون کې هم د مثبت تبعیض اصل څخه په استفادې ښځو ته ځانګړې ونډه په پام کې ونیول شوه لکه د دغه قانون ۸۳ ماده: « ... باید د هر ولایت د نفوسو په تناسب کم له کمه دوه تنه ښځینه وکیلانې په ولسي جرګه کې غړیتوب ولري» همداراز د یاد قانون د ۸۴ مادې پر بنسټ د مشرانو جرګې دریېمه برخه غړو څخه چې د جمهور رئیس له‌خوا انتصابېدل، نیمایي هغه یعنې ۱۵ثوکۍ ښځو ته ځانګړې شوې. په دې توګه د ولسي جرګې له ۲۴۹څوکیو څخه ۶۹ او د ولایتي شوراګانو له ۴۲۰ څوکیو څخه ۱۲۴هغه ښځو ته ورکړل شوې. له دې سربېره د کرزي حکومت د لومړۍ دورې په کابینه کې د ۲۴ وزارتونو له ډلې څخه ۴ هغه ښځو ته ورکړل شول.

له دې سره هم‌مهاله اشغالګرو د خپلو اړوندو مؤسسو او تبلیغاتي پروګرامونو له لارې په منظم او سیستماتیك ډول ښځې د خپل دین، شرعي مکلفیتونو او د خپلې ټولنې د عنعناتو او اعتقاداتو پر ضد راپارولې، دغې لړۍ ته د نورو ښځینه‌وو د هڅونې لپاره د دویدا صمدزۍ، حماسه کوهستانۍ، ملالۍ جویا او ځینو غرب‌ځپلو ښځو د تشهیر او مطرحه کولو لړۍ هم پیل شوه او هغوی په بېلابېلو ډالیو او القابو سره ونازول شوې.

له بلې‌خوا د ښځو د سیاسي او ټولنیز فعالیت لړۍ هم چټکه شوه او په دې برخه کې هم ښه پانګونه وشوه، یو زیات شمېر ښځینه ټولنو، مجلو، اخبارونو، راډیوګانو او ټلوېزیوني شبکو په فعالیت پیل وکړ او له دې لارې د غربي اصل پر بنسټ د ښځو سیاسي، اقتصادي او ټولنیز مشارکت او د هغوی د حقونو اعادې لپاره هڅې چټکې شوې.

په دغه موده کې د غربي او نورو سیکولر هېوادونو تعلیمي ادارو، غونډو او کنفرانسونو ته د افغان مېرمنو استولو او د غولوونکو جوائزو او القابو په ورکولو سربېره یو شمېر هغه افغان مېرمنې چې په یو نه یو ډول په افغان ټولنه کې داغداره او دردېدلې وې، لوېدیځو هېوادونو ته ور وبلل شوې، څکه دغه ډول مېرمنې چې د ورپېښو ستونزو له امله له دې ټولنې زړه توري شوې وې، لوېدیځوالو په ډېرې اسانۍ د افغان مسلمانې ټولنې پرضد کارولی شوای .په دې لړ کې په ۲۰۱۱کال کې د عایشې په نوم یوه افغانه مېرمن چې خپلې خسرګنۍ ترینه پوزه او غوږونه پرې کړي وو، امریکا ته وبلل شوه او بیا یې څو ځله په مطبوعاتو کې د خپلو سیاسي او کلتوري اهدافو د تحقق لپاره د یوې سوژې په دود وکاروله. له هغه وروسته د ګلناز په نوم افغانه مېرمن هم له‌خوا بهر ته واستول شوه چې په دې توګه یو زیات شمېر له تاریخ څخه ناخبره افغان مېرمنې د اشغال دسیسو په لومه کې کیوتلې.

۷مخ



## افغان اعلانات

## له افغانانو سره بشري مرستې باید...

کې د ایران او پاکستان له لوري په دغو هېوادونو کې د افغان کډوالو شکنجې او جبري ایستنې ته په اشارې ویلي، چې ګاونډي هېوادونه دې په زوره د افغان کډوالو ایستل بس کړي او په خبره یې، هغوی دې پرېښودل شي څو په خپله خوښه هېواد ته راستانه شي. نوموړي همدا راز ویلي، راستنېدونکي کډوال او بېځایه شوي افغانان بشري مرستو ته اړتیا لري او په کار ده چې اړونده مرستندویه ادارې بېړنۍ مرستې وکړي.

مولوي عبدالکبیر په دې اړه زیاته کړې: «خپلو اصلي مېنو ته د راستنېدونکو کډوالو او بې ځایه شویو کورنیو ستنېدو او هغوی لپاره د لازم چاپېریال برابرېدو ته باید کار وشي».

د جاپان سفیر هم ویلي، هېواد یې غواړي افغانستان ثبات ته ورسېږي او ټینګار یې کړی، چې په دې برخه کې د اسلامي امارت همکاري مهمه ده. جاپان له ۲۰۲۱ کال راهیسې له افغانانو سره بشري مرستې کوي، چې د سفیر تاکایوشي کورومایا په وینا، یوازې د تېر کال په ډسمبر میاشت کې یې له ایران او پاکستانه راستنېدونکو افغان کډوالو سره ۱.۵ میلیونه ډالر مرسته اعلان کړه. دا مرستې به د کډوالو په لنډ مهالو استوګنځیو، روغتیا، زده کړو او لومړنیو اړتیاوو ولګول شي.

له دې وړاندې جاپان د افغانستان لپاره ۲۷.۵ میلیونه ډالر بشري مرسته اعلان کړې وه، چې روغتیا، زده کړو، د نشه‌یي توکو پر وړاندې مبارزې، بدیل معیشت، د اوبو مدیریت او اقلیمي بدلون برخو ته ځانګړې شوې وه.

د یادونې وړ ده، چې مولوي عبدالکبیر بیا د جاپان له مرستو مننه کړې او ټینګار یې دا و چې مرستې باید سیاسي رنګ وانخلي.

د یادونې وړ ده، چې له ګاونډیو هېوادونو د جبري راګرځېدونکو افغانانو په اړه په تازه ریپوټ کې پرون د تورخم له لارې ۱۶، د کندهار د سپین بولدک له لارې ۱۰، د نیمروز د وربښمو پله له لارې ۵۵ او د هرات د اسلام کلا له لارې ۵۰ کورنۍ هېواد ته راستنې شوې دي. **نذیر منیب**

## ایبک ښاروالۍ نږدې ۴۵ میلیونه افغانۍ...

دا رقم ۵۹ میلیونه افغانیو ته ورسېږي.

نوموړي زیاته کړه چې دغه عواید له بېلابېلو سرچینو، لکه مارکېټونو، دوکانونو، د اعلاناتي لوحو، د استوګنې کورونو مالیاتو او د ښار د دروازو محصولاتو څخه راټول شوي دي.

خرم څرګنده کړه چې د ښاروالۍ عواید به د ایبک ښار د بیارغونې، د سړکونو او کوڅو د پاکوالي، د عامه ځایونو د رغونې او د ښاري خدمتونو د ښه والي لپاره ولګول شي ترڅو د ایبک ښار بڼه لا ښه شي او خلک له ښاري اسانتیاوو څخه برخمن شي.

## د زرغون کونړ په نوم د نیالګیو اېښودلو...

۹۰۰ زره نیالګي کېښودل شي.

نوموړي وویل، چې د دې کمپاین په لړ کې به نږدې یو میلیون میوه لرونکي، غیر میوه لرونکي او زینتي بوټي اېښودل کېږي.

د کمپاین د پرانیستې په مراسمو کې د کونړ مرستیال والي مولوي عبدالله حقاني وویل، ونې او بوټي د هېواد د سرسبزۍ او د انساني ژوند په پرمختګ کې مهم رول لري او د دې مهمې چارې لپاره زیاته پاملرنه کېږي.

ځایي مسئولینو له سیمه ییزو خلکو غوښتنه وکړه چې د نیالګي اېښودلو په دې کمپاین کې برخه واخلي او خپل ملي مسئولیت ادا کړي.

## خوست کې ۵۰۰ کورنۍ له وارداتي...

د مرکز اړوند د ډیري او کنډیو سیمو ۱۶۱ او ۱۵۶ ترانسفارمرونه دویم فیډر پورې وصل او منتاژ شول.

نوموړي زیاته کړه، چې د دغو دوه ترانسفارمرونو په وسیله به شاوخوا ۵۰۰ کورنۍ د برېښنا له اسانتیاوو څخه برخمنې شي.

د یادونې وړ ده، چې د یادو ترانسفارمرونو لګول او کارونه د برېښنا ریاست او د سیمې خلکو په همکارۍ یو کال وړاندې پیل شوي وو، چې په کې یو شمېر کسانو ته د کار زمینه هم برابره شوې وه.

## ۱۴۱۵ خانواده در کابل کمک نقدی...

از توزیع این کمک‌ها خبر داده است.

بـه گفتـه وزارت امـور مهاجریـن و عودت‌کنندگان، برای هر خانواده ۲ هزار و ۹۰۰ افغانی در یک روند شفاف از سوی یکـی از نهادهای همکار بـا این وزارت توزیع شده است.

در خبرنامـه آمده کـه افراد یادشـده در ناحیه ۱۷ شـهر کابل از سوی وزارت امور مهاجرین و عودت‌کنندگان شناسایی شده بودند.

همراه با کمـک نقدی برای هر یک از این خانواده‌ها یک بسته مواد مغذی جلوگیری از سوء تغذیه توزیع شده است.

کمک‌هـای یادشـده در روزهای سـرد زمسـتان در اختیار خانواده‌هـای نیازمند قرار داده شده است.

## ۹۷ قلم آثار تاریخی به موزیم ملی...

پاک‌کاری ابتدائی، ترمیم و ثبت و سجل مقدماتی توسـط هیأت اعزامی به موزیم ملی انتقال گردید.

مجموعه آثـار که به موزیـم ملی انتقال گردید شـامل: آثار تیل سـوز سـفالی، تیراکوتا ها، مهره، دوک‌های نخ ریسـی، جوال دوز، سـرمه کش، سـر مجسـمه و ظـروف اند که از نظر نوعیت شـامل: آثار نوع سنگی، سـفالی، گچی، فلزی و استخوانی می‌باشد.

آثار باسـتانی نماد فرهنگ و عظمت این سـرزمین است که نشـان دهنده هویت تاریخی، سیاسـی، فرهنگی و اقتصادی و اجتماعـی اند که از دوره‌های گذشـته بـرای ما باقی مانده اسـت. ایـن آثار از لحاظ دوره تاریخـی مربوط به دوره‌های کوشانی، کوشانی-ساسـانی، ساسانی-کوشـانی میـان قـرون ۲-۷ میـلادی می‌باشد.

ذبیح الله سـادات رییس باستانی‌شناسی می‌افزاید که حفاظت و نگهداری از آثار باسـتانی نقش بسـیار مهم در فرهنگ و تاریخ یک کشور دارد، آثار باستانی نماد فرهنگ انسان‌های گذشـته این سرزمین می‌باشـد. حفاظت و نگهـداری آن امر ضروری پنداشـته شـده که نسـل آینده را از ارزش تاریخـی و فرهنگـی آن آگاه می‌سازد.

## په ملي او نړیواله کچه د حرفوي زده کړو...

لازیاتـه پاملرنه غـواړي او وایي چې له زده کړو وروسـته دې ورسره په کار موندنه کې هم مرستې وشي.

ښـاغلي احمدزي پرون له حرفوي زده کـړو فارغانو ته په غونډه کې وویل چې دغـه وزات هر کال شـاوخوا ۳۴ زره اشـخاص له حرفو فارغـوي: د یادولو وړ یـې بولـم، چـې د روان کال په ۹ میاشـتو کې شـاوخوا ۳۵ زره ځوانان پـه پلازمېنـه کابـل او نـورو ولایتونو کـې د کار او ټولیزو چـارو وزارت په مختلفـو حرفو کې فارغ کړي دي؛ دغه وزارت چې پـه ۳۴ ولایتونو کې مراکز لـري، د کال تـر ۳۴ زره پورې فارغان لري.

نوموړی زیاتوي، دغه اسناد چې د یاد وزارت لـه لوري ورکول کېـږي، په هر ځای کې د اسـتفادې وړ دي: تاسې ته هغه اسـناد درکوو چې په ټول افغانستان کې ترې اسـتفاده کولی شئ، همدغه اسـناد تاسـې کولی شئ چې په خپل وخت سـره یې په بهر کې هم استعمال کړئ او تاسـې بـه د کار و کسـب او مسلک خاوندان یئ.

د یـاد وزارت لـه حرفـوي زده کـړو فـارغ وحیداللـه عبدالرحیمزي امارتي ورځپاڼو سـره په خبـرو کې د حکومت له یادو کړنو خوښـي څرګندوي او وایي چـې ماته دغـو زده کړو دومـره زمینه مسـاعده کړې، چې یـو کار پیل کړم.

هغـه وایـي: دا برنامې موږ تـه ډېرې مهمې دي، ځکه کوم کسـب یا شـغل مو نه درلـود او اوس کولی شـو، چې ځانتـه له همدې لارې یوه حلاله روزي پیدا کړو.

**تاج محمد بهار**

## اشغال؛ فکري جګړه او وارداتي...

نـو لـه همدې امله ویلی شو چې دغـه ډول آزادۍ اصلاً آزادي نـه بلکـې د یوې ځانګړې کـړۍ لـه‌خـوا د ښځو د عـزت او ناموس پـر سـر سـودا وه چې د څو حاکمـو غربـي جاسوسـانو لـه‌خـوا د اشـغالګرو د خوشـالۍ او د خپلې جنسـي لـوږې د اشباع لپاره لـه هغـوی څخـه اسـتفاده کېـده او پـه دې نـوم ډېرې پـروژې پلې شـوې.

څرنګـه چې د پارلمـان پـر یـو شـمېر ښـځینه وکیلانـو هـم دا تـور وو چـې د چـارو اداري پخوانـي رئیس ډاکتـر فضل‌محمـود فضلـي سـره د نامشـروع اړیکـو پـر بنسـټ یـې ولسـي جرګـې تـه لار موندلـې وه. حتـی داسـې قضیـې هـم ثبـت شـوې چـې د ځینـو وکیلانـو خاوندانـو خپلـو مېرمنـو تـه طـلاق ورکـړ.

لـه دې سـربېره د واکمنـۍ پـر مرکـز (ارګ) هـم د فحشـاء تورونـه ولګـول شـول څرنګـه چـې د اشـرف غنـي سـلاکار جنـرال حبیب‌اللـه احمـدزي هلتـه ځینـې کـړۍ د فحشـاء پـه ترویـج تورنـې کـړې چـې ګواکـي ښـځینه کارکوونکـې پـه‌کـې د جنسـي اړیکـو پـر بنسـټ پـه دنـدو ګمـارل کېدې، چـې پـه بـاور یـې ځینـې وکیلانـې د همدغـې فاسـدې معاملـې پـر بنسـټ حتـی د ۴۰۰ او ۵۰۰ رأیـو پـه بـدل کـې ولسـي جرګـې تـه بریالـۍ شـوې.

احمـدزي لـه رسـنیو سـره پـه مرکـه کـې د دې ډول فعالـو حقلـو لـه ډلـې د فضلـي ګـروپ پـه نامـه د ولسمشـر د سـلاکار او چـارو اداري لـوی رئیس«فضـل محمـود فضلـي» نـوم یـاد کـړ او هغـه یـې د نـورو پـه پرتلـه پـه دې برخـه کـې زیـات فعـال وبالـه چـې د هغـه دغـه ادعـا د ارګ یـوې پخوانـۍ کارکوونکـې (مریـم وردګ) هـم تأییـد کـړه.

همدارنګـه د غني د حکومـت د کانونـو او پټرولیـم وزارت سرپرسـتې مېرمـن نرګـس نهان هـم پـه دې وروسـتیو کـې لـه«Zharf Dar ۶۰» خبـري چینـل سـره پـه مرکـه کـې د ارګ د اخلاقـي فسـاد پـه اړه وویـل چـې د ولسمشـر یـو تـن سـلاکار (شـاه‌محمد څرګنـد) لـه خپلـې یـوې همـکارې څخـه چـې شیعه مذهبـه وه، د دویـم بسـت او زرهـي موټـر پـه بـدل کـې د شـپږ میاشـتنۍ موقتـي صیغـه نـکاح غوښـتنه کولـه خـو کلـه چـې دغـه نجلـۍ لـه ډېـرو فشـارونو سـره سـره دې کار تـه حاضـره نه‌شـوه، نـو ښـاغلي غنـي تـه یـې هغـه د ایـران اسـتخباراتو تـه د جاسوسـې پـه توګـه ور معرفـي کـړه چـې هغـه هـم دغـه نجلـۍ دنـدې منفکـه کـړه. لـه دې سـربېره پـه ځینـو ورزشـي ادارو کـې هـم د نجونـو پـه عـزت لوبـې روانـې وې، څرنګـه چـې د فوټبـال ښـځینه ټیـم یـوې لوبغـاړې خالـدې پوپلـزۍ پـه ۲۰۱۹ کال کـې د فوټبـال فدراسـیون پخوانـي رئیـس کرام‌الدیـن کریـم او د دغـه فدراسـیون شـپږ نـورو غـړي تـورن کـړل چـې لـه خپـل موقـف او مقـام څخـه پـه نـاوړه اسـتفادې یـې د کم‌عمـره نجونـو پـر عـزت تیـری کاو، چـې دغـې مسـئلې هغـه مهـال پـه نړیوالـه کچـه یـو لـړ غبرګونونـه هـم راوپـارول.

**نـور بیا...**

## هرات کې د برېښنا د ٤ پروژو...

به د ۲۰۰ کیلو واټه بادي برېښنا او د ۱۰۰ کیلو واټه لمریزې برېښنا د پروژو چارې هم ژر پیل شي.

ورته مهال د هرات ولایت اوسېدونکو د یادو پروژو د پیل له چارو خوښي ښودلې او وایي، چې د برېښنا په تامین سره به یې د برېښنا په برخه کې شته ستونزې حل شي.

## غزه د فلسطیني وګړو خاوره ده...

بلکې د مسلمانانو د کرکې پارونې او د سیمې د کړکېچ د زیاتوالي لامل هم ګرځي.))

اسلامي امارت د نړۍ له اغېزمنو هېوادونو غوښتي چې ددې ډول دسیسو پر وړاندې یو ډول، واحد او پر وخت دریځ خپل کړي.

د افغانستان اسلامي امارت په داسې وخت کې د فلسطینیانو د بېځایه کول غندلي چې تازه ډونالډ ټرمپ ویلي چې د غزې واکې به دوی په لاس کې واخلي او هلته به امریکایي اشغالګر ځای پر ځای کړي.

## حمایت از بخش‌های ورزشی مکاتب،...

کشـور نیـز حضـور داشـت، رییس عمومی المپیـک، تربیت بدنی و ورزش گفته که همیشـه برای رشـد و انکشاف ورزش کمک کرده است.

او افزوده که بدون شـک برای رشـد و انکشـاف هرچـه بیشـتر ورزش آماده هرگونه کمک و همکاری است.

در همیـن حـال، مسـوولین اتحادیـه مکاتب دشـت برچی ورزش در مکاتب را سـبب رشـد ذهنـی دانش‌آمـوزان دانسته‌اند.

آنـان خواسـتار کمک و همـکاری در راستای رشـد و انکشـاف و ورزش در مکاتب غرب کابل شده‌اند.

این در حالی است که مسوولین ریاست عمومـی تربیت بدنـی و ورزش همواره تعهدشان را برای حمایت از ورزشکاران در کشور در عمل ثابت کرده‌اند.

## کابل پوهنتون کې د ماسترۍ او دوکتورا...

پـه دوکتـورا برنامو کې د فقـې او قانون، علـوم حدیـث، کمپیوټـر سـاینس، وترنـري، عربي ژبـې او ادبیاتـو، ښوالۍ او افغانسـتان پېژندنـې برخې شـاملې دي.

په ماسـټرۍ برنامو کـې د جزایي قانون او جرمونـو پوهه، اسـلامي کلتور، دعوت، اسـلامي عقیده او فلسفه، د نباتاتو ساتنه، کرنـه، عمومـي اروا‌پوهنه، افغانسـتان پېژندنې، ښوونیز پلان او پالیسي، صنعتي کیمیـا او هایدرولـوژي برخې شـاملې دي.

## فراه کې د اسان خدمت ځانګې...

د نومـوړي په وینا په دغـه ودانۍ کې د ۲ تالارونـو او نورو اړینـو ملحقاتو جوړول شامل دي چې چارې به یې د یوې میاشتې په موده کې بشـپړې او ګټې اخیسـتنې ته وسپارل شي.

د یادونـې وړده، چـې د یـادې ودانۍ په جوړېدو سـره به د دغه ولایت اوسېدونکو تـه د برېښـنایي پېژندپاڼو، پاسـپورټونو او زېـږون کارتونـو د وېش پـه برخه کې اسانتیاوې رامنځته شي.

## بهره‌برداری از یک مرکز صحی...

سـاختمان مرکز صحی ولسـوالی بادپخ ولایت لغمان از سـوی مولوی شیراحمد حقانـی، والی ایـن ولایت افتتاح شـده است.

در خبرنامـه وزارت صحت عامه آمده که هزینه سـاخت این مرکز صحی از سـوی کمیشـنری عالی سـازمان ملل متحد در امور پناهنـده‌گان (UNHCR) پرداخت شده است.

ایـن مرکز صحـی در گسـتره چهارونیم جریـب زمین سـاخته شـده و دارای ۱۸ اتاق، ساحه سبز، توقف‌گاه وسایط و دیگر امکانات و سهولت ساخته شده است.

با تکمیـل کار این مرکز مشـکلات ده‌ها خانـواده از نظـر حل مشـکلات صحی مرفوع شده است.

## فاریاب کې څه باندې ۸ زره اړمنو وګړو ته

دغـه راز په دې مـوده کـې، ۱ زر ۷۱ کسـانو تـه د روغتیـا سـاتنې پـه تړاو اړینـې مشـورې، ۳۳۶ مېرمنـو تـه د زېږون په برخـه کې خدمتونه، ۱ زر ۶۹ خوارځواکو ماشـومانو ته د خوارځواکۍ اړوند خوارکي توکـي او ۳۳۱ مېرمنو ته د امیندوارۍ په برخه کې لازې مشـورې هم ورکړل شوې دي.

د افغاني سـرې میاشـتې ټولنـه چې د بشري مرسـتو یو له مهمو بنسټونو څخه ده، پـه دې لړ کې خپلو فعالیتونو ته دوام ورکوي.

## د کوچنیو بندونو سترې...

وهلـو وروسـته ګاونډیـو هېـوادو ته داخلېږي. په دې حسـاب نـو فرضاً که زمـوږ هر سـیمه ییـز حکومـت خپلو اړونـدو کلیو کې لومړیتوب ته په کتو هر کال د یـو بند جوړول خپل هدف وټاکي او هغـه هم داسـې چې د لګښـت یوه برخه یې د ولسـي اشر په توګه پر اړوندو کلیو ور واچوي، څه برخه یې له مرکزي حکومته او څه یې له نړیوالو مؤسسـاتو تر لاسـه کړي، غالب ګومـان دی چې که خدای کول هره ولسـوالي به هر کال په اسـانۍ سـره د یو یو بند پر جوړولو وتوانیـږي- دا چاره حتمـاً کېدونکې ده خو شـرط دادی چې اخـلاص، د کار او خدمت تلوسـه، د وطـن مینه او لوړ همت موجود وي.

..وهلـو وروسـته ګاونډیـو هېـوادو ته داخلېږي. په دې حسـاب نـو فرضاً که زمـوږ هر سـیمه ییـز حکومـت خپلو اړونـدو کلیو کې لومړیتوب ته په کتو هر کال د یـو بند جوړول خپل هدف وټاکي او هغـه هم داسـې چې د لګښـت یوه برخه یې د ولسـي اشر په توګه پر اړوندو کلیو ور واچوي، څه برخه یې له مرکزي حکومته او څه یې له نړیوالو مؤسسـاتو تر لاسـه کړي، غالب ګومـان دی چې که خدای کول هره ولسـوالي به هر کال په اسـانۍ سـره د یو یو بند پر جوړولو وتوانیـږي- دا چاره حتمـاً کېدونکې ده خو شـرط دادی چې اخـلاص، د کار او خدمت تلوسـه، د وطـن مینه او لوړ همت موجود وي.

# Shariat Daily

**Shariat**
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
ویب سایت: WWW.shariatdaily.com

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسؤل مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت بریښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Thursday 06 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 676


## مولوي عبدالکبیر:
# له افغانانو سره بشري مرستې باید سیاسي نه شي




**شریعت:** د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو وزیر مولوي عبدالکبیر کابل کې د جاپان له سفیر تاکایوشي کوروما‌یا سره کتلي، چې د کډوالو وزیر په باور دا غونډې به د افغانستان او جاپان تر منځ اړیکې لا پیاوړې کړي

د کډوالو وزارت خبر ورکړی، چې په دې کتنه کې د کډوالو وزیر ویلي، هېواد ته بېرته راستنېدونکي کډوال او بې ځایه شوي بشري مرستو ته اړتیا لري او مرستندویه اداري باید بېړنۍ مرستې وکړي.

مولوي عبدالکبیر ټینګار کړی: «هېوادونه باید بشري مرستو ته سیاسي رنګ ورنه کړي او له کوم توپیر پرته دې د اړمنو لاسنیوی وکړي».

هغه په دې وروستیو... ۷مخ

## ۸ زاره اوبوس توپونه بیارغول شوي



د ملي دفاع وزارت وايي، چې د ۲۰۵ البدر قول‌اردو اړوند د درنو وسلو په ورکشاپ کې ۸ ضربه اوبوس توپونه د مسلکي او تخنیکي انجنیرانو له لوري ترمیم او ګټې اخیستو ته سپارل شوي دي.

د یادې قول‌اردو مسئولین وايي، چې دغه ترمیم شوي توپونه د تېرې ادارې په مهال تخریب شوي وو.

د ویلو ده، چې له دې وړاندې هم په یاد ورکشاپ کې ګڼ شمېر سپکې او درنې وسلې بیا ځلې ترمیم او ګټې اخیستو ته سپارل شوې دي.

## ایبک ښاروالۍ نږدې ۴۵ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي




د سمنګانو ولایت د ایبک ښاروالۍ مسئولین وايي، چې روان کال یې د مالي سیستم د غوره مدیریت په پایله کې نږدې ۴۵ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي.

د ایبک ښاروالۍ د عوایدو د اصلاح مدیر محمد رحیم خرم باختر اطلاعاتي آژانس ته وویل، چې د روان مالي کال په ۹ میاشتو کې ۴۴ میلیونه ۶۶۲ زره افغانۍ عواید راټول شوي او تمه کېږي چې د کال تر پایه... ۷مخ

## هرات کې د برښنا د ۴ پروژو چارې پیل شوې




د افغانستان د برښنا شرکت مسئولین وايي، چې د هرات ولایت په څلورو ولسوالیو کې د ۸.۱ میلیونه ډالرو په لګښت د څلورو سب ستېشنونو د نصبولو چارې پیل شوې دي.

د افغانستان د برښنا شرکت عمومي اجرائیوي رییس مولوي عبدالباري عمر باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د دغه ولایت په چشت شریف، اوبې، کرخ او پښتون زرغون ولسوالیو کې د څلورو سب ستېشنونو د جوړولو چارې ۸۰ سلنه بشپړې شوې وې او اوس مهال یې د ۸ میلیونه ډالرو په لګښت پاتې ۲۰ سلنه نورې چارې پیل کړې.

نوموړي زیاته کړې، چې د برښنا په هر سب استېشن ۲ میلیونه ډالر لګښت راځي، چې چارې به یې د ۶ میاشتو په موده کې بشپړې شي او پر مټ به یې ۴۰ زره کورنۍ له برښنا څخه برخمنې شي.

د هرات والي شیخ مولانا اسلام جار د یادو پروژو د هرکلي ترڅنګ وویل، چې په نږدې راتلونکي کې به په دغه ولایت کې د پل هاشمي د برښنا سب استېشن پرانېستلو او د یو شمېر نور لویو اقتصادي پروژو د پیل ترڅنګ ... ۷مخ

## د زرغون کونړ په نوم د نیالګیو ایښودلو کمپاین پیل شو



د کونړ د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست له خوا د (زرغون کونړ) تر سرلیک لاندې د نیالګیو ایښودلو کمپاین پیل شوی دی.

د یاد ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رییس مولوي سلیمان ایمن وویل، چې د دې ولایت په دولتي او خصوصي قوریو کې سلګونه زره بوټي روزل شوي، چې د دغه ولایت په کچه به سږ کال... ۷مخ

## خوست کې ۵۰۰ کورنۍ له وارداتي برښنا برخمنې شوې



د خوست ځایي مسوولین وایي چې د دغه ښار په ډېرې او کنډیو سیمو کې د برېښنا رسولو د دوو لوړ تناژه ترانسفرمونو د لګولو چارې بشپړې او ګټې اخیستنې ته سپارل شوې دي.

د خوست ولایت د مقام ویاند مستغفر ګربز وویل، چې... ۷مخ

## ۱۴۱۵ خانواده در کابل کمک نقدی دریافت کردند




وزارت امور مهاجرین و عودت‌کنندگان می‌گوید، برای یک‌هزار و ۴۱۵ خانواده در کابل کمک نقدی توزیع شده است.

این وزارت روز (چهارشنبه، ۱۷ دلو) با نشر خبرنامه‌ای... ص۷

# رویدادهای خارجی

## زېلینسکي له پوتین سره د سولې خبرو ته چمتووالی ښودلی



د اوکراین ولسمشر ولودیمیر زېلیسنکي له خپل سیال ولادیمیر پوتین سره د سولې په موخه خبرو ته چمتووالی ښودلی دی.

زېلینسکي له یوه برېتانوي خبریال سره په مرکه کې وویلي: «که د روسیې او اوکراین جګړه له ډیپلوماتیکو لارو پای مومي؛ نو د امریکا او اروپا په همکارۍ زه چمتو یم چې خبرو ته کینم. »

د یادو هېوادونو ترمنځ جګړه له ۲۰۲۲ کال راهیسې روانه ده، چې لا هم د نړیوالو سیاستوالو، ډیپلوماټانو او عامو خلکو د بحث مهم ټکي دي.

## سوېډن کې یو بریدګر لس تنه وژلي




د سویډن چارواکي وايي، چې د دغه هېواد په اوریبرو ښار کې په یوه ښوونیز مرکز کې د ډزو له امله د بریدګر په ګډون لس کسان وژل شوي دي.

د سویډن پولیسو په دې وروستیو کې اعلان وکړ چې دا پیښه د اوریبرو په ښار کې رامنځته شوه، چې د هېواد د پلازمینې ستاکهولم څخه ۲۰۰ کیلومتره لویدیځ کې موقعیت لري.

د راپورونو له مخې دا پیښه د کمپس ریسبرګسکا ثانوي ښوونځي کې شوې.

د یادونې وړ ده چې د وژل شویو کسانو او بریدګر دقیق هویت لا نه دی مشخص شوی. په همدې حال کې، د سویډن پولیسو تر اوسه دا نه ده تایید کړې چې د پیښې قربانیان څوک دي.

## د سپینې ماڼۍ مخې ته لاریونونه؛ فلسطین د پلور نه دی



د امریکا سپینې ماڼۍ مخې ته سلګونه لاریون کوونکو د ولسمشر ډونالډ ټرمپ هغو څرګندونو په غبرګون کې لاریون کړی چې ویلي یې دي، امریکا به پر غزه ولکه خپله او هلته به خپل ځواکونه ځای پر ځای کړي.

لاریون کوونکو ټرمپ ته خبرداری ورکړی چې فلسطین د پلور لپاره نه‌دی او له نوموړي یې، غوښتنه وکړه چې اسراییلو ته د وسلو لېږد ودروي.

لاریون‌کوونکو د ازاد فلسطین نارې وهلې او د صهیونیست رژیم جنایتونه یې وغندل.

ټرمپ وړاندې ویلي وو، که فلسطینیانو ته موکې برابره شي، لېواله دي چې غزه پرېږدي او پر خپل هغه دریځ یې، ټینګار کړی چې غواړي فلسطینیان نورو سیمو کې ځای پر ځای کړي.

## تأکید عربستان سعودی بر تشکیل دولت مستقل در فلسطین

وزارت امور خارجه عربستان سعودی اعلام کرده که موضع این کشور در قبال تشکیل دولت مستقل در فلسطین خلل‌ناپذیر بوده و پابرجاست.

به نظر می‌رسد این بیانیه وزارت امور خارجه عربستان سعودی در واکنش به اظهارات دونالد ترامپ، رییس جمهور امریکا مبنی‌بر بیرون راندن فلسطینی‌ها از خاک‌شان و اشغال این کشور، بیان شده است.

در بیانیه این وزارت آمده، تا زمانیکه دولت مستقل در فلسطین تشکیل نشود با رژیم صهیونیستی اسراییل روابط برقرار نخواهد کرد.

این در حالی است که رییس جمهور امریکا در حضور اسراییل گفته که واشنگتن غزه را اشغال خواهد کرد.

